تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسہ حذیقۃ الاحناف

بسم الله الرحمن الرحيم

# ازتشريحات النابضة

## مسئلة تقبيل اليدين والرجلين

# مسئلة تقبيل اليدين و الرجلين :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده ولا رسول بعده وهو خاتم النبيين،

أما بعد! فأعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم وَخَرُّوا لَهُ سُجَّدًا .الاية

دا مسئله نزاعي بيننا وبين الخصم دا هغه عظيمه مسئله ده چې زمن د صحابه کرامو تابعينو کې او تر دې وخته طرز او طريقه د مسلمانانو د خپلو اکابرو علماء مشائخو صلحاء سره تعظيم کول دي په تقبيل د يد باندې يا تقبيل د رجل باندې خصم د اهل السنة والجماعة مخالفين دې عمل ته شرک وايي اکابرين علماء د دوي اهل تصنيف د دوي جرأت د فتوی په شرک د تقبيل د يد او رجل باندې نه شي کولې او د دوي په کتبو کې هم نسبت د شرک ورته نه دي شوې خو عوامو خپلو ته په دې باندې فتوی ورکوي او عوام د اهل خصمو چې دې ټول په دې متفق دي چې بنکلول د لاس او خپو ته شرک وايي ، خاصتاً اشاعة التوحيد والا چې مسمی دي په دې علاقه کې په پنجپيريانو سره هغوي مطلقاً لاس او خپو بنکلولو ته شرک وايي .

نو مونږ د غه مسئله په چند مباحثو باندې مشتمله کړخوو چې مبحث اول عمل د صحابه کرامو د نبي اکرم ﷺ سره چې طرز او طريقه د صحابه کرامو هغه زمانه کې له رحمت عالم سره څه شي وه آيا هغوي ادب او تعظيم د نبي عليه السلام په تقبيل د يد او رجل سره کړې او که نه .

نو نصوصو نه به واضحه شي چې صحابه کرامو تعظيماً وتکريماً د نبي اکرم ﷺ خپې او لاسونه بنکل کړي دي .

دا رنګې د غه مبحث کې به ضمناً څه داسې روايات هم راشي چې رحمت عالم تقبيل د غير کړې وي هغه به هم ورسره واضحه شي .

ډير داسې مسائل دي چې هغې کې نص مرفوعه مونږ ونه لرو نو مخالفين وايي چې دې کې حديث مرفوعه نشته نو انکار ورنه کوي که موقوفات او د تابعينو فتوی او د فقهاء نصوص ولرو راسره يې نه تسليموي په د غه وجه چې دې کې ګني نص مرفوع نشته او دې کې د نبي عليه السلام نه څه ثبوت نشته بيا چې کومه مسئله مونږ د نصوصو مرفوعه وو نه ثابته

کړو هغلته يا د مخالفينو دانکار لاره يا څه شي وي نو يا وايي نه چې هغه خو پيغمبر وه د بل چا سره دا عمل ناروا دي چې کوم شي هغه نه ثابت نه وي نو رو نه ثابت وي وايي نه يې مني هغه نه يې ثابت کړه.

او چې کوم شي د هغه نه ثابت کړو يا وايي نه هغه خو پيغمبر وه بل چا د پاره دا نه منو نو اوس به مونږ پيش کوو څه شي نصوص به مرفوع پيش کوو که موقوف که مرفوع پيش کوو وايي هغه خو پيغمبر دي هغه پورې خاص دي که غير مرفوع پيش کوو وايي نه، نه يې منو مرفوع راته وښايه.

داد مخالفينو طرز او طريقه د انکار ده لاس او خپې ښکلولو ته دوي شرک وايي يا چې احاديث مرفوع مونږ پيش کړو د صحابه وو عمل د رحمت عالم سره نو جواب دا کوي چې هغه خو پيغمبر وه نو دا کوم دين دي چې په هغې کې شرکت د انبياء مع الله جائز دي او د غير نبي ناجائز دي دا خو يو دين کې هم نشته.

يو شي چې شرک وي هغه عمل مع الانبياء يا هم شرک دي او مع الاولياء هم شرک دي په شرکياتو کې خو څه خصوصيات د انبياء نشته دي چې انبياء شريک مع الله ګڼل جائز دي او اولياء ګڼې ناجائز دي چې شرک شو خو د هر چا لپاره شرک شو يا نو يا خو هم هغوي دا تاويل کولې شي په هغه رواياتو کې چې هغه خو پيغمبر وه.

نو دويم مبحث به ددوي ددې اعتراض جواب هم وکړي چې عمل صحابه رضوان الله تعالى عليهم اجمعين فيما بينهم نو ددوي شبهه به دفع شي چې صحابه کرام رضي الله عنهم خو انبياء نه وه په خپل مينځ کې يې د يو بل تعظيم په تقبيل د يد او رجل سره کړي.

دريم مبحث عمل د تابعينو او تبع تابعينو فيما بينهم چې ددوي عمل خپل مينځ کې يا د صحابه کرامو سره په تعظيم او تکريم کې څه شي وه.

څلورم اقوال د فقهاء او د محدثينو د څلورو مذهبونو معروف وو نه به تائيدا په کې پيش شي چې هغوي دې باره کې څه قول کړي او دا مسئله زما په شکل د استفتاء ده په نوم د عبدالولي يو کس چې د مردان او سيدونکي دي ما سره يې رابطه وکړه او ما نه يې استفتاء وکړه:

ما يقول العلماء في تقبيل اليد الصالح ورجله ههنا في مردان با کستان جماعة للپنجپيرية

مسماة باشاعة التوحيد والسنة يقولون ان تقبيل يد الصالح ورجله شرك او وسيلة من وسائل الشرك فهل هم يصيبون في قولهم أم لا بينوا توجروا.

**جواب:** نو هغې ته مونږ جواب کړې:

نعم ان تقبيل يد غيره وكذا رجله اذا كان لزهده وصلاحه او علمه وشرفه وصيانته ونحو ذلك من الامور دينية فهو جائز بل مستحب كما كانت الصحابة رضوان الله عنهم تفعلوه مع النبي صلى الله عليه وسلم وان كان لغناه ودنياه وشوكته ووجاهته عند اهل الدنيا ونحو ذلك فمكروه شديد الكراهية.

نو دا هغه جواب مختصراً شوې دي.

عام فقهاء يا تقبيل په پنځه قسمه کوي:

(۱) قبلة المودة: د محبت او مودت تقبيل مثال يې لکه تقبيل د والد دي ولد لره على الخد وغير ذلک دا يوه نوعه د تقبيل جائز ده.

(۲) قبلة الرحمة: هغه تقبيل دي د والد ولد لره على الرأس او يا پلار مور بوداګان شي يا بيمار شي بچي راشي پلار يا مور بښکل کړي سر باندې.

(۳) قبلة الشفقة لأخيه على الجبهة: کشر ورور د شفقت له وجهې په تندي بښکلول.

(۴) قبلة الشهوة لمرأته وأمته على الفم وغيرها: دا هم له جائزو نه دي.

(۵) قبلة التحية: د احترام او تعظيم لپاره للمؤمنين على اليد والرجل.

بعضې فقهاء شپږمه نوعه د تقبيل جائزه ذکر کړې ده چې قبلة الديانة ده للحجر الاسود، حجر اسود چې بښکل يې کړي دا قبله د ديانت ده.

زمونږ د دغه مذکور روايات به د دغه ټولو باره کې راشي چې مونږ ذکر کړل چې دا جائز دي جانب مقابل چې تقبيل غير جائز ګڼي تقبيل د حجر اسود باره کې څه نه شي ويلې ځکه هغه په نص ثابت دي او تقبيل د ښځې او وينځې لره اويا دا نور تفصيلات چې ذکر شول دوي منکر نه دي بغير د تقبيل تحيه نه دينه دوي منکر دي او دا فرق بايد مونږ دوي نه وپوښتو

چې تاسو څه فرق لري په دې کې چې تقبيل د تحيه شرک دي او تقبيل د شهوة جائز دي او يا د نور تقبيلات جائز دي .

تقبيل د ديانت د حجر اسود چې هغه يو عام کاڼړي دي جنت نه راغلي معبود خو نه دي مخلوق دي که څه هم شرافت لري خو شرافت د پيغمبر او ولي ته نه شي رسيدلې د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رأيه داده چې دا کعبه هم د مؤمن شرافت ته نه شي رسيدلې .

بخاري شريف کې دده روايات راځي کعبې مبارکې ته راغې ورته ودريده الله دې شرافت او عزت نور هم زيات کړه خو ما ته په يقين سره معلومه ده چې ستا عزت او شرافت د مؤمن عزت او شرافت ته نه شي رسيدلې نو تقبيل د حجر اسود يا مسحه کول د کعبې لپاره د تبرک او حال دادي چې د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په فتوى باندې د مؤمن شرافت او عزت په کعبه باندې زائد دي .

او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تمسيس د کعبې لپاره د تبرک جائز ګڼي د بخاري شريف روايت دي چې معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله طواف کوه نو دا څلور کوټونه د کعبې چې حجر اسود دي يا رکن عراقي دي يا رکن شامي دي يا رکن يماني دي نو معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به يو رکن هم نه پريخوده بدون د تمسيس نه هر يو رکن ته به يې لاس وروړو نو چا پرې آواز وکړو چې معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ته څه کوې نو هغه ورته جواب کې وايي :

ليس شيء من البيت مهجوراً .

د کعبې يو شي هم متروک نه دي دا هر يو له برکت نه ډک دي نو د احترام او برکت لپاره تمسيس کول شي اګر که زمونږ فقهاء په حالت د طواف کې تمسيسات ددې دوه عراقي او د شامي د کوټونو مکروه ګڼي خو د هغې وجه دا نه ده چې ګڼې تعظيم يې ناروا دي او تمسيس للتبرک يې ناروا دي د هغې وجه داده چې دا داخل د طواف مثل د داخل الصلوة دي او په هغې کې زيادات په قول د يو شخص باندې نه شي کيدې نو چې هر کله حالت د طواف وي نو په مرفوع حديث کې دلته نه دي ثابت نو نه دي کول په کار کله چې طواف ختم شو دا خو د کعبې کوټونه دي چې د مکې معظمې خاوره باندې لاس کشول د برکت لپاره هم روا ده څکه هغه ځاى د نزول د رحمت دي هلته انوار وريږي هر ځاى برکت نه ډک دي .

# اول مبحث : د صحابه کرامو رضي الله عنهم عمل :

مبحث في عمل الصحابة رضوان الله اجمعين مع النبي صلى الله عليه وسلم انهم كانوا يقبلون يد النبي ورجله صلى الله عليه وسلم وكذا عمل النبي صلى الله عليه وسلم مع الصحابة رضوان الله اجمعين .

**اول روايت :** فتح الباري جلد ۱۱ صفحه ۵۷ حديث ذکر کوي :

ان عمر رضي الله عنه قد قبل يد النبي صلى الله عليه وسلم .

حضرت عمر رضي الله عنه د رحمت عالم صلى الله عليه وسلم لاس بنکل کړي دي .

تحفة الاحوذي شرح د ترمذي جلد ۷ صفحه ۳۹ کې ذکر کوي :

حدثنا عبدالله بن جعفر القصير قال نا احمد بن الحسين سجادة قال نا صالح بن مبارك قال نا عبيدالله بن سعيد قائد الأعمش عن الاعمش عن ابي سفيان عن جابر ان عمر رضي الله عنه قام الى النبي صلى الله عليه وسلم فقبل يده .

حضرت عمر رضي الله عنه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته ودريده او د هغه لاس مبارک يې بنکل کړ .

دا روايت الرخصة في تقبيل اليد لابن المقري چې شيخ د امام بخاري دي محمد بن ابراهيم المقري يې نوم دي د رجالو د بخاري نه دي .

جلد ۱ صفحه ۱۳ کې چې رقم د حديث ۱۱ جوړيږي هم ذکر کړې دي .

سنن الترمذي جلد ۲ صفحه ۹۷ د پاکستان چاپونو نه دي ذکر کوي او هر چې د بيروت چاپ دي جلد ۵ صفحه ۷۶ دده .

ان زيد بن حارثة رضي الله عنه قد قبل يد النبي صلى الله عليه وسلم چې مرقم دي په رقم د ۲۷۳۲ باندې او باب نمبر دي ۳۲ باب ماجاء في المعانقة والقبلة .

تفسير قرطبي جلد ۱۵ صفحه ۳۶۱ :

**دويم روايت :** حدثنا محمد بن اسماعيل قال حدثني ابي يحى بن محمد عن محمد بن اسحاق عن محمد بن مسلم الزهري عن عروة بن الزبير عن عائشة قالت قدم زيد بن

حارثة المدينة ورسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في بيتي فأتاه فقرع الباب الخ.

مطلب دا چې قميص به يې نه وه دې مبارک به اکثر چې بهر وتلو نو ډير تجمل کې به وتلو په دغه ورځ د حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مينه باندې همداسې ووتلو .

فاعتنقه وقبله ، دې کې احتمال د دواړو شته دي که ضمير مرفوعه د فاعتنقه وقبله راجع نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته شي نو ضمير منصوبه ده د هو به راجع حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته شي چې دا معروف تاويل دي په غيږ کې وه نيوه نبي عَلَيْهِ السَّلَام حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره او ښکل کړ نبي عَلَيْهِ السَّلَام حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره او يا عکس وکړ .

ضمير مرفوعه په دواړو کې حضرت زيد ته راجع کړه او ضمير منصوبه نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته راجع کړه چې حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښکل کړ غيږ کې يې ونيوه . او د قرطبي نه غير دا حديث سيوطي رَحِمَهُ اللهُ ذکر کړي په جامع الاحاديث جلد ۴ صفحه ۱۱۸ دغه شان ابن الاثير في جامع الاصول من احاديث الرسول جلد ۵ صفحه ۳۰۲۷ کې هم ذکر کړي .

او امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ په شرح السنة جلد ۶ صفحه ۱۹۸ کې هم ذکر کړي او دغه شان امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ په شرح د معاني الآثار جلد ۴ صفحه ۲۸۱ کې ذکر کړي دغسې امام نووي رَحِمَهُ اللهُ رياض الصالحين جلد ۱ صفحه ۴۵۷ او ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ فتح الباري جلد ۱۱ صفحه ۵۷ ذکر کړي او ابن بطال په شرح د بخاري جلد ۱۷ صفحه ۵۳ کې ذکر کړي عون المعبود شرح د ابي داؤد جلد ۱۱ صفحه ۲۵۲ کې هم ذکر کړي .

او تحفة الاحوذي جلد ۷ صفحه ۴۳۴ کې ذکر کړي محمد بن ابراهيم المقري په الرخصة في تقبيل اليد جلد ۱ صفحه ۲۴ کې ذکر کړي چې رقم د حديث ۲۲ دي .

دارنګې فتح الباري جلد ۸ صفحه ۱۲۲ په بعضې چاپونو کې جلد ۱۱ صفحه ۶۷ ده کې ذکر کوي :

ان كعب ابن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قد قبل يد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وركبته ، حضرت کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام لاس او زنګنونه ښکل کړي وه .

**دريم روايت :** اخبرنا ابو القاسم اسماعيل بن احمد أنبأنا احمد بن محمد بن احمد انبأنا عيسى بن علي بن عيسى انبأنا عبد الله بن محمد بن عبد العزيز حدثنا محمد بن الفرج

حدثنا عبد السلام بن حرب الملائي عن اسحاق بن عبد الله عن عبد الرحمن بن كعب بن مالك عن ابيه قال: لما نزلت توبتي اتيت النبي صلى الله عليه وسلم فقبلت يده وركبته.

دا هغه ثلاثه وو کې داخل دي چې غزوي د تبوک نه پاتې شوي وه او دوي نه تعبير کولې شي په متکاسلينو بالتوبه سره، توبه يې وروسته قبوله شوه.

﴿وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا﴾.

هغه دري کسان مراره ابن ربيع هلال ابن اميه او کعب ابن مالک، دا دري کسان وو، اوږده واقعه ده چې نبي عليه السلام دوي سره مکالمات او تسليمات منعه کړې وه ځلويښتمه ورځ باندې رحمت عالم بيبيانې هم ترې جدا کړي امتحان وه پنځوسمه ورځ وه چې آيت نازل شو توبه يې قبوله شوه نو دې وايي کله چې نازله شوه توبه زمونږه يعنې قبوله شوه آيت نازل شو او د بشارت لپاره څوک دده کورته لاړ او خپلې جوړي يې انعام کې ورکړي نو زه چې راغلم:

فقبلت يد النبي صلى الله عليه وسلم. ما د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم لاس بنکل کړ.

وعند ابن مردوي من وجه آخران كعب ابن مالك لما نزلت توبتي اتيت النبي صلى الله عليه وسلم فقبلت يده وركبتيه.

د مسند ابن مردويه روايت کې دادی چې هر کله آيت نازل شو او زما توبه نازله شوه نو راغلم ما دنبي عليه السلام لاس بنکل کړل او زنګنونه مې ورته بنکل کړه هغه ناست وه.

اوس هم ډير مريدان د خپل شيخ او شاګردان د خپل استاذ لاسونه او چې ناست وي زنګنونه بنکلوي او د اهلسنت والجماعت مخالفين دې ته شرک وايي خو دا شرک نه دي صحابه کرامو د رحمت عالم سره دا عمل کړې دي.

تاريخ دمشق لابن عساکر جلد ۵۰ صفحه ۲۰۶، دارنګې تفسير در المنثور جلد ۵ صفحه ۱۸۴ ذکر کوي:

واخرج ابو الشيخ وابن المردوية عن كعب ابن مالك رضي الله عنه قال لما نزلت توبتي اتيت النبي صلى الله عليه وسلم فقبلت يده وركبتيه.

نو ابن مردویه متفرد په لفظ د تقبیل د رکبتیه کې نشو ابو الشیخ هم ورسره دغه روایت کې معي شو .

ونزعت له ثوبي فكسوته ايأهما ببشراه. چا چې زیرې راباندې کړې وه هغه ته مې جامې ورکړې .

او دا روایت محمد ابن ابراهیم المقري په الرخصة جلد ۱ صفحه ۳ کې ذکر کړې.

سیوطي رَحِمَهُ اللهُ په جامع الاحادیث جلد ۳۷ صفحه ۴۹۷ کې هم ذکر کړې رقم د حدیث دي : ۴۰۹۶۰.

## څلورم روایت :

امالي د محاملي جلد ۱ صفحه ۲۵۱ رقم د حدیث ۲۰۴۱ ذکر کوي :

حدثنا الحسين حدثنا ابو هشام الرفاعي حدثنا سعيد بن عامر حدثنا شعبة عن زياد بن ابي علاقة عن اسامة ابن شريك قال قمنا الى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقبلنا يده .

دغه حدیث خطیب بغدادي په الجامع لاخلاق الراوي وآداب السامع جلد ۱ صفحه ۳۶۲ رقم د حدیث ۳۱۴ کې ذکر کړې .

دارنګې محمد بن ابراهيم المقري الرخصة جلد ۱ صفحه ۴ کې هم ذکر کړې .

دارنګې ابن حجر عسقلاني په فتح الباري جلد ۱۱ صفحه ۵۷ کې ذکر کړې ، بیا وایي :

وسنده قوي .

او تحفة الاحوذي جلد ۷ صفحه ۳۹ کې ذکر کړې بیا وایي وسنده قوي ، سند د حدیث قوي دی .

## پنځم روایت :

مسند احمد جلد ۲ صفحه ۲۴۸ :

حدثنا عبدالله قال حدثنا ابي قال حدثنا محمد بن الفضيل عن يزيد عن عبد الرحمن عن ابن ابي ليلى عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انه قد قبل يد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

داحدیث مسند ابي يعلى جلد ۵ صفحه ۲۶۰ کې ذکر کړې او مجمع الزوائد منبع

الفوائد جلد ۷ صفحه ۳۵۴ هم ذکر کړي.

دارنګې ابن الاعرابي په القبل والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۳ کې ذکر کړې رقم د حديث ۲ ده.

دارنګې الورع جلد ۱ صفحه ۱۴۴ کې ذکر کړي.

فتح الباري جلد ۱۱ صفحه ۶۷ کې فرمايي: د باندې نه يو کس راځي د وفد نجران نه دا راغې د رحمت عالم سر هم ښکلوي او خپې يې هم ورته ښکل کړي:

ان رجلاً اعرابياً قد قبل الرأس النبي صلى الله عليه وسلم ورجليه.

## څلورم روايت:

دارنګې القبل والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۵۳ تحفة الاحوذي جلد ۷ صفحه ۴۳۷ کې ذکر کوي:

قال حدثنا ابراهيم بن ابي الجحيم حدثنا عبدالعزيز بن الخطاب حدثنا حبان بن علي عن صالح بن حيان عن ابي بريدة عن ابيه قال جاء اعرابي الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال يا رسول الله اني قد اسلمت فأرني شيئاً ازدد به يقيناً قال ما تريد.

وښايه ما ته يو شي چې زما يقين پرې زيات شي معجزه وښايه نبي عليه السلام ورته وويل خه دې مقصد دی.

قال ادع تلك الشجرة فلتأتك. دغه بوټي ته آواز وکړه تا ته دې راشي.

قال اذهب اليها فادعها. نبي عليه السلام دې اعرابي ته وايي ورشه پسې راوي غواړه هغه ورغې ورته وايي:

اجيبي رسول الله صلى الله عليه وسلم. دعوت قبول کړه د رسول الله صلى الله عليه وسلم.

فمالت فقطعت عروقها. دغه ونه يو طرف ته راکږه شوه هغه جرړې يې راپرې کړي.

ثم اقبلت. بيا را راوانه شوه.

تجر عروقها وفروعها. هغه جرړې او ښاخونه يې راښکلې ځان پسې را روانه وه.

حتى أتت النبي ﷺ فقالت السلام عليك يا رسول الله ﷺ .
هغه بوټي آواز وکړ .
فقال حسبي . هغه اعرابي وويل کفايت کوي دا مالره .
ثم رها فلترجع فرجعت فدلت عروقها في ذلك المكان ثم استوت كما كانت فقال ائذن لي ان اقبل رأسك ورجليك .
هغه اعرابي راوړاندې شو وايې اجازت وکړه چې سر دې ښکل کړم خپې دې ښکل کړم .
فاذن له رسول الله ﷺ فقبل رأسه ورجليه .
نبي عليه السلام اجازت ورکړ اعرابي ته نو اعرابي د نبي عليه السلام سر مبارک هم ښکل کړاو پښې مبارکې يې هم ورته ښکل کړې ، اعرابي بيا وويل :
ائذن لي ان اسجد لك قال لا يسجد احد لأحد ولو كنت أمرا احدا ان يسجد لاحد لامرت المرأة ان تسجد لزوجها تعظيما لحقه .
نو تقبيل للتكريم جائز دي ستا دا انحنا بقصد تقبيل وي لا لقصد التعظيم ، نو انحنا محضه بدون د تقبيل نه ممنوع ده نو تقبيل للتكريم ثابت ده او انحنا للتعظيم ممنوع ده نو تيتيدل د ښکلولو لپاره وکړه او ښکلول د تعظيم لپاره وکړه .
دا مخکې ذکر شوې حديث محمد ابن ابراهيم المقري په الرخصة جلد ۱ صفحه ۷ کې هم ذکر کړي .

## اوم روايت :

ان زارع وكان في وفد عبد القيس ثلاثة عشر راكبا رضي الله عنهم كلهم قد قبلوا يد النبي ﷺ .
أبي داؤد شريف کې دا روايت مذکور دې ديارلس کسان راغلي دې خلکو ته رسول الله ﷺ څه تعليمات په محضر عام کې ورکړې وه هغه تعليمات ډيرې اصولي خبرې

وي تول محدثين يې ذکر کوي هغې نه د دين ډيرې غټې شعبې خورې شوې دي دوی ته چې کوم تعليم ورکول شوې نو دا وفد عبد القيس ديارلس کسان وه ټولو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام لاس او خپې ښکل کړي خو څه کتابونو کې يو يو بيل بيل ذکر کړي دي هغه مونږ په عدد کې راوستي دي .

مسند ابي يعلى الموصلي جلد ۱۲ صفحه ۲۴۶ رقم د حديث ۶۸۵۰ :

حدثنا محمد بن صدران ابو جعفر حدثنا طالب بن حجير العبدي حدثنا هود العصري

عن جده قال بينما رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يحدث اصحابه اذ قال .

رحمت عالم خبرې کولې بيا يې وفرمايل :

يطلع عليكم من هذا الوجه ركب من خير اهل المشرق .

ګوره هغوي نه دي راغلې اخبار عن الغيب ده د صحابه کرامو مينځ کې ناست ده خبرې کوي وايي دې طرف نه به تاسو ته څه سواره مسافر اوس راشي چې دا د مشرق په خلکو کې غوره مسافرين دي ځکه د دين زده کړې ته راغلې .

فقام عمر بن الخطاب فتوجه في ذلك الوجه .

په هغه طرف عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بهر ته ووتلو شک نه کوي چې دا خلک راځي او که نه.

فلقي ثلاثة عشر راكباً فرحب وقرب وقال من القوم .

ديارلس کسان راکبين وه هغوي سره ملاقي شو مرحبا يې ورته وويل ورنزدې شو ورته وې ويل څوک ياستې ؟

قالوا قوم من عبد القيس قال فما اقدمكم هذه البلاد ؟ التجارة .

څه شي راوستي مدينې منورې ته تجارت ته راغلې يې .

قالوا لا . وايي نه .

قال فتبيعون سيوفكم هذه . دا تورې مو لاسونو کې دي دا خو به خرڅوي نه .

قالوا لا . هغوي وويل نه .

قال فلعلكم انما قدمتم في طلب هذا الرجل .

کیدي شي د ې شخص باره کې راغلي یاستې نبي علیه السلام یې ورته یاد کړ.

اوس هذا النبي هذا الرسول تعریفات یې هم ذکر نه کړل، هذا الرجل یې وویل هغوي ته دا ښایي معلومات ترې اوس کوي د هغوي حال معلوموي چې دوي د نبي علیه السلام په حق کې حسن عقیدت دي او که غلط خلک دي دا الفاظو ته ګوري:

في طلب هذا الرجل، د ې سړي ته ملاقات لپاره راغلې یې هغوي ته یې ذهن کې دا راڅوله چې زه هم ګنې ډیر عظیم د محبینو نه، نه یم خو چې د ې تاسو حال څه دي.

دا هغه کشف کوي د هغوي د حالاتو خبره یې روغه وه په نیت د بې ادبي خو یې نه ده کړې تفتیش لپاره یې کړي:

قالوا آجل فمشی معهم. هغوي وویل او د ې هم ورسره راغې.

یحدثهم. خبرې یې ورسره کولې.

حتی نظر الی النبي صلی الله علیه وسلم فقال لهم هذا صاحبکم الذي تطلبون.

ورته وې ویل وایې ستاسو صاحب دادی چا پسې چې راغلې یې.

فرمی القوم بأنفسهم عن رحالهم.

د ې دیارلس کسانو د خپلو رحلونو نه چې هغه اوښانو باندې سواره وه د هغې نه یې ځانونه راوغورځول.

فمنهم من سعی سعیًا. چا منډې وهلې.

ومنهم من هرول. چا په مزل کې سعیه کوله.

ومنهم من مشی. چا عادي مزل کوه.

حتی اتوا رسول الله صلی الله علیه وسلم فأخذوا بیده یقبلونها.

لاس د نبي علیه السلام یې ونیوه ښکلوه یې.

وقعدوا الیه. کیناستل.

وبقي الاشج وهو اصغر القوم.

هغه راننغي.

فاناخ الابل وعقلها. هغه هلته اوښ چوکوي تړي يې.

وجمع متاع القوم ثم اقبل يمشي على تؤدة. د قوم سامان يې جمع کړ بيا راروان شو راته په ډير سکون اطميان سره بنه په عزت سره راغي.

بل روايت کې راځي چې جامې يې هم بدلې کړي.

حتى اتى رسول الله صلى الله عليه وسلم فاخذ بيده فقبلها.

ده هم د نبي عليه السلام لاس مبارک ښکل کړ. نبي عليه السلام ددې اشج تعريف کوي:

فقال النبي صلى الله عليه وسلم فيك خصلتان يحبهما الله ورسوله.

دوه خويونه درکې دي د خدای تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم ډير خوښ شول.

قال: وماهما يا نبي الله؟ هغه څه دي ای د خدای نبي؟

قال: الاناءة والتؤدة.

دغه حديث ذکر کړي امام طبراني معجم الکبير جلد ۲۰ صفحه ۳۴۵ کې رقم د حديث دي: ۸۱۲، مجمع الزوائد ممبع الفوائد جلد ۹ صفحه ۳۸۰ رقم د حديث دي: ۱۶۰۶. او ابن حجر عسقلاني رحمه الله په المطالب العالية جلد ۱۱ صفحه ۴۳۸ کې هم ذکر کړي دا حديث ابي داؤد هم ذکر کړي خو مخکې حديث کې دا راځي چې لاس يې ورته ښکل کړي خو روايت د ابي داود کې راځي:

فنقبل يد النبي صلى الله عليه وسلم ورجله. مونږ لاس او خپې ورته ښکل کړل هلته بل څوک روايت د وفد عبد القيس نه کوي دلته خپله وفد قيس روايت کوي.

حديث د ابي داؤد داده:

حدثنا محمد بن عيسى بن الطباع حدثنا مطر بن عبد الرحمن الأعنق حدثتني ام ابان بنت الوازع بن زارع عن جدها زارع وكان في وفد عبد القيس قال لما قدمنا المدينة فجعلنا نتبادر من رواحلنا فنقبل يد النبي صلى الله عليه وسلم ورجله قال وانتظر المنذر الاشج حتى اتى عيبته فلبس ثوبيه ثم اتى النبي صلى الله عليه وسلم فقال له: ان فيك خَلَّتَيْنِ يحبهما الله: الحلم، والاناة.

دا حدیث چې کوم حدیث کې د وفد قیس تقبیل د رجل ذکر دي اما بیهقي ذکر کړي په سنن الکبری جلد ۲ صفحه ۳۵۰ ؛ دا رنګې امام بیهقي دا حدیث ذکر کړي په دلائل النبوة کې جلد ۵ صفحه ۴۱۶ ؛ دا رنګې شعب الایمان جلد ۱۸ صفحه ۴۷۶ کې هم ذکر کړي.

دا رنګې امام طبراني په معجم الاوسط جلد ۱ صفحه ۱۳۳ کې هم ذکر کړي رقم د حدیث : ۴۱۸.

دا رنګې جامع الاصول من احادیث الرسول جلد ۱۱ صفحه ۹۳۲۵.

دا رنګې القبل والمعانقة والمصافحة کې جلد ۱ صفحه ۵۲ رقم حدیث : ۴۲.

## اتم روایت :

الادب المفرد د امام بخاري جلد ۱ صفحه ۳۲۷ کې فرمایي :

ان جمعاً غفیراً من الصحابة وفیهم ابن عمر رضي الله عنهما قد قبلوا ید النبي صلی الله علیه وسلم.

نو امام بخاري رحمه الله په ادب المفرد کې باب لړوي باب تقبیل الید په هغه کې دغه حدیث ذکر کوي :

حدثنا موسی قال حدثنا ابو عوانة عن یزید بن ابي زیاد عن عبد الرحمن بن ابي لیلی عن ابن عمر قال کنا في غزوة فحاص الناس حیصة.

شکست کړ شو په خلکو کې.

قلنا کیف نلق النبي صلی الله علیه وسلم وقد فررنا.

په کومو سترګو به لقاء کوو مونږ خو تیښته کړې ده.

فنزلت : إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ ، سورة الانفال آیت : ۱۶. فقلنا لا نقدم المدینة فلا یرانا احد فقلنا لو قدمنا فخرج النبي صلی الله علیه وسلم من صلاة الفجر قلنا نحن الفرارون.

دوي خپل مینځ کې مشوره وکړه چې د صبایي په مانځه کې چې کله نبي علیه السلام راشي مونږ به ورته وایو : نحن الفرارون ، یعني عاجزي به وکړو چې مونږ را تختیدلي یو بس شفقت به یې راباندې راشي غصه به ونه کړي.

قال : نو رحمت عالم صلی الله علیه وسلم جواب ورکوي :

انتم العكارون. تاسې بیا حمله کوونکي یاستئ.

یعني فراریان ځان ته مه وایي تاسې بیا حمله کوونکې یئ.

فقبلنا یده. ښکل کړو مونږ لاس د نبي عليه السلام. انا فئتکم.

بیا بل باب لړوي: باب تقبیل الرجل.

دا چې بیا احادیث پرې را آخلي هغه خو وروسته خبره ده نو د باب د ترجمې نه خو دا خبره معلومه شوه چې امام بخاري قائل د تقبیل د رجل ده د نیکانو د خپو د ښکلولو قائل دي چې دا دې ښکل شي دده خپل مذهب دا شو.

که یو څوک وایي چې دې باب کې دا حدیث ضعیف دي یا راوي باندې جرحه ده دا په خپل ځای امام بخاري خو پرې باب لړولې هغه خو ددې قائل دي او تاسې مخالفین د اهلسنت والجماعت خو دې عمل ته شرک وایي.

دا حدیث ابي داؤد هم ذکر کړي بیروت چاپ جلد ۸ صفحه ۱۱۲، بیهقي ذکر کړي سنن خپل کې جلد ۲ صفحه ۳۴۶، ابن ابي شیبه ذکر کړي مصنف جلد ٦ صفحه ۵۴۱ کې باب لړوي: باب ما جاء في الفرار من الزحف.

دارنګې امام بیهقي ذکر کړي شعب الایمان جلد ۱۸ صفحه ۴۷۴، امام طحاوي ذکر کړي په مشکل الآثار جلد ۲ صفحه ۳۸٦، خطیب بغدادي په الجامع لأخلاق الراوي وآداب السامع جلد ۱ صفحه ۳٦۳، فتح الباري جلد ۱۱ صفحه ٦۲ ذکر کړي.

امام بیهقي په الاداب جلد ۱ صفحه ۱۳۲ کې هم ذکر کړي.

## نهم روایت:

سنن الترمذي جلد ۲ صفحه ۹۸ کې ذکر کوي:

ان یهودین قد قبلا یدي النبي صلى الله عليه وسلم ورجلیه وما انکر علیهما.

دوه یهودیانو راغلل د نبي عليه السلام لاس او خپې یې ښکل کړي که څوک اعتراض کوي چې هغه خو یهودیان دي جواب دا دی:

وما أنکر عليه السلام علیهما.

نبي عليه السلام ترې انکار ونه کړه.

مونږ دې ځای نه استدلال کوو که دا شرک واي نبي عليه السلام به منع کړې واي ، امام ترمذي باب لږولې پرې : باب ما جاء في قبلة اليد والرجل ، پـه آدابو کې ښکلولو د لاس او ښپو ترې ثابتوي ، امام ترمذي د حديث ذکر کولو نه وروسته وايي :

هذا حديث حسن صحيح .

د پشاوري يو شاګرد دلته راغلې وه چرته چا زما لاس ښکل کړې وه هغه يې ليدلې وه ماته يې وويل چې : مونږ شيخ مونږ ته وايي چې دا شرک دي ما ورته دا حديث وليکه چې دا دې شيخ ته ورکه هغه لاړو دا يو لسم کال دي چې جواب به يې راځي خو زه به دنيا کې نه يم .

حدثنا محمود بن غيلان حدثنا ابوداود ويزيد بن هارون وابوالوليد عن شعبة عن عمرو بن مرة عن عبدالله بن سلمة عن صفوان بن عسال ان يهوديين قال احدهما لصاحبه اذهب بنا الى هذا النبي صلى الله عليه وسلم نسأله .

د صفوان رضي الله عنه روايت ده دوه يهوديان راغلل يو يهودي بل ته وايي راځه چې لاړ شو دغه نبي عليه السلام ته .

فقال : هغه بل دې ملګرې ته وايي : لا تقل له نبي ، نبي ورته مه وايه ده ته .

فانه ان سمعها كان له اربعة اعين .

که يې واوري دا خبره د ستا نه چې ته ورته نبي وايي شي به ده لره څلور ستر ګې دا کنايه ګرځوي سرور نه چې دا به بيا ډير خوشحاله شي بيا .

فاتيا النبي صلى الله عليه وسلم . دواړه راغلل نبي عليه السلام ته .

فسألاه ، تپوس کوي .

عن قول الله عزوجل وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ الاسراء آيت : ۱۰۱.

دا څه شي دي چې قرآن کريم کې راځي .

د علم بلاغت دا قاعده ده کله مجيب د سائل د سوال خلاف کوي ځکه چې سوال د سائل بې ځايه وي مفيد د فائدې نه وي هغه مجيب او مفتي د هغه د ذهن موافق څه نور جوابونه ورکړي ذهن يې خلاص کړي نو نبي عليه السلام ورته نور شيان ښايي :

فقال لهم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لا تشركوا بالله شيئاً ولا تزنوا .

دا خو تسع آیت بینات کې نه دي خو لکه دویته بنایي چې په شرک ککړیې په زنا ککړ یې په نورو حرامو مبتلا یې او تاسې اوس تپوس نه د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د معجزو کوي دا مخپل ځانونه خو یو ځل اصلاح کړي نو ورته فرمایي :

لا تشركوا بالله شيئاً ولا تسرقوا ولا تزنوا ولا تقتلوا النفس التي حرم الله الا بالحق ولا تمشوا ببريء الى سلطان فيقتله ولا تسحروا ولا تأكلوا الربا ولا تقذفوا محصنة ولا تفروا من الزحف .

دا یې ورته بیان کړه بیا ورته وایي :

وعليكم يا معشر اليهود خاصة الا تعدوا في السبت قال فقبلا يديه ورجليه .

دې دواړو ښکل کړه دواړه لاسونه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او دواړه خپې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ .

وقالا نشهد انك نبي .

دې حدیث نه یوه بله جزیه اختلافي زمونږ او د براي نام اهل حدیثو تر مینځ هم ترې ثابتیږي هغه دا چې دوي وایي چې په دواړو لاسونو سترې مشي کول بدعت ده او په یو لاس سترې مشي کول سنت ده نو دې ځای نه دا مسئله ثابتیږي .

فقبلا يديه . ښکل کړه دې دواړو لاسونه دواړه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ .

دوي یعنې براي نام اهل حدیث استدلال د څه شي نه کوي دا مخکې څو روایتونه چې تیر شول .

فقبل يده ، نو ید مفرد دي لاس یې ورته ښکل کړ دا افراد لفظ د لاس چې مفرد راغلې په حدیثو کې ، دا دلیل دي چې یو لاس دي دوه نه دي نو جواب ترې نه داده چې دلته ید مفرد ذکر کولو نه مطلب دا نه دي .

چې ګنې یو لاس یې ورکړي بلکې دا کنایه ده له سترې مشو نه عرفاً دا اصطلاح وي لکه دلته پاکستان کې چې څوک چا سره میلاو شي د هغې نه حکایت کوي ، زه ورغلم لاس مې ورسره میلاو کړ یا ما سره فلاني لاس میلاو کړ حال داده چې سترې مشي یې په غیږه کړي ،

کنایه ترې نه په لاس میلاویدلو سره کوي که دوه لاسه یې هم ورکړي وي وای لاس مې ورسره میلاو کړ.

او د عربو هم دا اصطلاح ده : اخذت یده ، ما یې لاس ونیوه ، یعنې سترې مشي مې ورسره وکړل قطعه لحاظ ددې نه چې یویې راکړدوه یې راکړه مفرد راغې تثنیه نه ده مراد.

یو ځل دلته مدرسې زما ته د رستمي له مدرسې نه څه ملایان راغلې وه څو مسئلو کې یې ما سره بحث وکړیوه په کې دا مسئله وه او ما ته یې وویل چې ید مفرد راغلې بس یو مراد ده دوه نه دي ما ورته وویل دا کنایه د سترې مشو نه ده په عرف کې د عربو او د پاکستان د خلکو دي ما لاس میلاو کړ نو مقصدي سترې مشي وي یو دوه دې کې نه وي ، مراد دوي وویل نه ید مفرد دي ما ورته وویل چې ید مفرد وي په هر ځای کې یو به مراد وي دواړه به نه وي مراد د هغوي وویل آو ، ما ورته وویل :

المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده.

دې کې اوس تاسې څه وایې ید خو مفرد دي کنه اوس بنې لاس مراد دي که چپ نو هغوي وویل دا خبره پرېږده مونږ هسې ملاقات ته راغلي یو نو په دواړو لاسونو سترې مشو ته بدعت وایي او چې ورته وایي چې امام بخاري دې کې باب لړولي : باب الاخذ بالیدین په کتاب الادب کې مستحب داده چې په دواړه لاسه سترې مشي وشي نو بیا دوي وایي نه د امام بخاري ډیر بعید استدلال دي.

استدلال یې تام نه دي ځکه وایي باب شته خو حدیث نشته ورسره ولې نشته خو هر کجا کله پرې پوهیږي هغه دا حدیث را اخیستې دي عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي : ما ته نبي علیه السلام تعلیم د تشهد کوه نو هغې کې روایات دادي چې ما لاسونه د هغه مبارک په لاسونو کې ورکړل نو ما ته یې تعلیم راکړ هغه د بیعت او تعلیم طریقه کې لاسونه ورکولو باندې قیاس کوي.

امام بخاري هلته یدین ورکول جائز وه دلته هم یدین جائز دي نو دوي وایي استدلال یې بعید دي تام نه دي دې سره وایي حدیث د مصافحې نشته ځکه یې مونږ نه منو ، نو مونږ ورته وایو چې د امام بخاري په کتاب کې باب وي او حدیث نه وي تاسو یې نه منې نو بیا زه درته چیلنج درکوم.

امام بخاري باب لړولې امين بالجهر باندې: باب التأمين بالجهر، حديث ورسره نشته، حديث يې ورسره دا را اخيستې:

اذا قال الامام ولا الضالين آمين فقولوا آمين.

امام چې ولا الضالين آمين وويلې نو تاسو هم آمين ووايي که دا آمين په جهر نه واي نو چې امام ولا الضالين آمين نو ته څه پوه شوي چې امام آمين وويلې دا ستا آمين وروستہ آمين د امام نه دي دې نه پته لږي چې امام به آمين په زوره وايي.

ګوره دوي اوس څومره بعيد استدلال وکوه زمونږ د بخاري شريف شيخ صاحب به وويل دغه حديث د آمين په رابطه چې مذکور دي په بخاري شريف کې د همدغې صفحې په آخره کې يو بل باب لګيدلې دي هغې کې حديث راځي:

اذا قال الامام سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد فقولوا ربنا ولك الحمد.

امام چې ربنا لك الحمد ووايي تاسې هم ربنا ولك الحمد ووايي نو وايي چې ولا الضالين آمين نه چې آمين بالجهر ثابتوي.

نو ربنا ولك الحمد هم امام ته په جهر سره ثابت کړه او دا د هيچا مذهب هم نه دي نو اوس تا ته څه پته لږي چې امام ربنا ولك الحمد وويلې خو دغه ځاى د همدغې شي دي چې سمع الله لمن حمده يې وويلې نو د ربنا ولك الحمد وخت راورسيده نو ته به يې وايي.

او چې امام ولا الضالين وويلې نو چې کيږي ولې خو آمين وايي نو ته يې هم ووايه نو جهر خو ترې نه ثابتيږي.

دا کوم چې تير شو نهم روايت وه او دا حديث ذکر کړي مسند احمد جلد ۴ صفحه ۲۳۹ . امام بيهقي په خپل سنن کې ذکر کړي جلد ۲ صفحه ۴۹ دارنګې امام بيهقي ذکر کړي په دلائل النبوة جلد ۷ صفحه ۱۴ کې.

ابو عبيد هيروي ذکر کړي په فضائل القرآن جلد ۱ صفحه ۴۹۸ کې
ابن کثير ذکر کړي په خپل تفسير جلد ۵ صفحه ۱۲۵ کې
قرطبي ذکر کړي په خپل تفسير جلد ۱۰ صفحه ۳۳۵ کې

شوكاني ذكر كړي فتح القدير جلد ۴ صفحه ۳۶۲ کې
ثمرقندي ذكر كړي بحر العلوم جلد ۳ صفحه ۲۸ کې
سيوطي رَحِمَهُ ٱللَّهُ در المنثور جلد ٦ صفحه ۳۲۷ کې ذكر كړي هغې کې يې تائيدات هم ذكر كړي ددغه روايت.

## لسم روايت:

ان مزيدة العبدي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قد قبل يد النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وكان في وفد القيس.
معجم الكبير جلد ۲۰ صفحه ......
المنتقى من كتاب الطبقات لابي عروبة الحراني جلد ۱ صفحه ۹۲:
حدثنا اسحاق بن ابراهيم الصواف حدثني يحيى بن راشد حدثنا طالب بن حجير العبدي حدثنا هود العصري قال سمعت جدي مزيدة قال وفدنا الى رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.
د وفد په شكل کې راغلو مونږ رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په وفد قيس کې.
فنزلتُ فقبلتُ يده. د اوبنانو نه را كوز شو مونږ بنكل كړل لاس د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.
دا حديث په طبقات المحدثين کې ابو شيخ اصبهاني جلد ۳ صفحه ۱۰۵ کې ذكر كړي.
محمد بن ابراهيم المقري ذكر كړي په الرخصة في تقبيل اليد جلد ۱ صفحه ۱۱ کې.

## يولسم روايت:

ان عامر بن طفيل رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قد قبل رجلي النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.
الرخصة في تقبيل اليد لابن المقري جلد ۱ صفحه ۱۶:
حدثنا ابو يعلى احمد بن علي قال حدثتنا ام الهيثم بنت عبد الرحمن بن فضالة بن عبدالله بن ابي بكر السعدية من بني سعد بن بكر وجدتها فيما ذكرت حليمة بنت كبشة بنت ابي ذويب القطوية مرضع النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قالت حدثني ابي عبد الرحمن بن فضالة بن عبدالله بن ابي بكر بن ربيعة قال حدثني ابي فضالة بن عبدالله قال حدثني ابي عبدالله بن ابي بكر.

وكان عبد الله قد رأى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أن عامر بن الطفيل إنتهى الى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يا عامر اسلم تسلم ، قال واللات والعزى لا اسلم . اسلام نه راوړم .

حتى تسطيني المدر واعنة الخيل والوبر والعمود .

آسونه ، او بنان يعني طلب د مشري ترې كوي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه .

قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاتصيب يا عامر بن الطفيل واحدا منهم حتى تسلم . قال واللات والعزى لأملأن اكنافها عليك خيلاً ورجالاً وذكر كلاماً كثيرا .

په غيږه دله لښكر كې به راشم سواره او پيدل علاقې به د آسونو نه ډكې كړم .

ثم لحق برسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فأرسل خطام ناقته وطرح السلاح وأقبل يتعادى حتى أتى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقبل قدميه قال اشهد ان لا اله الا الله وانك رسول الله آمنت بك وبما انزل عليك وعقد له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللواء واسلم على يدي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واعطاه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السيف وقاتل بين يدي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

## دوولسم روايت :

ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قد قبل جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بين عينيه .

المستدرک على الصحيحين للحاكم جلد ۳ صفحه ۱۲۱۶ كې ذكر دي : حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حبشو ته تللې وه او لو مهاجرينو كې واپس چې كله راغې مدينې منورې ته دا شپږم كال د هجرت وه د خيبر د فتحې ورځ وه دې چې كله راغې ډارک خيبر ته لاړ سره د هغو كسانو چې نوي يې ايمانونه راوړې وه :

عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال وجه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جعفر بن ابي طالب الى بلاد الحبشة فلما قدم اعتنقه وقبل بين عينيه .

هر كله چې حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په غيږ كې ونيوه معانقه ثابته شوه خو حالت اكثري نه دي اقلي دي ، دې مقابله كې حالت اكثري د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مصافحه ده

جائز ده معانقه او ښکل کړه نبي عليه السلام حضرت جعفر رضي الله عنه په تندي باندې په دې ائنه ورته د صلوة تسبيح تعليم ښود لې دی.

او يد روايت دي نورو مؤرخينو د ا راخيستي چې نبي عليه السلام ورته وفرمايل :

لا ادري انا افرح بقدوم جعفر ام بفتح خيبر.

زیر خوشحاله يمه چې د ا خوشحالي په فتحه د خيبر ده که په قدوم د جعفر ده.

هذا حديث امام طحاوي په شرح د معاني الآثار جلد ۴ صفحه ۲۸۱ کې را اخيستی

امام بيهقي رحمه الله په دلائل النبوة جلد ۴ صفحه ۳۳۹ کې را اخيستی دی. ابن عدي په الکامل جلد ۵ صفحه ۲۴۳ کې ذکر کړي چې راوي په کې حضرت علي رضي الله عنه دی. ابن قانع را اخيستې په جلد ۱ صفحه ۱۵۲ کې، مسند البزار په جلد ۴ صفحه ۱۵۱ کې ذکر کړی، مجمع الزوائد جلد ۹ صفحه ۴۱۹ کې ذکر کړي.

## دیارلسم روایت :

ان ابابکر صديق رضي الله عنه قد قبل النبي صلى الله عليه وسلم بين عينيه.

حدثنا موسى بن ابي عائشة عن ابي عن عبيدالله بن عبدالله عن ابن عباس عن عائشة رضي الله عنها ان أبابكر رضي الله عنه قبل النبي صلى الله عليه وسلم وهو ميت.

د رحمت عالم صلى الله عليه وسلم چې وصال وشو حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه راغي مخه يې ښکل کړه.

دا حديث امام نسائي هم را اخيستی جلد ۴ صفحه ۳۰۹ په باب تقبيل الميت کې.

امام ترمذي هم ذکر کړي په جلد ۲ صفحه ۱۴ کې بيا وايي :

حديث عائشة حديث حسن صحيح واقر الالباني بصحة الحديث.

ابن ماجه ذكر كړي په سنن خپل جلد ۴ صفحه ۴۶۷ کې. مسند احمد را اخيستی په جلد ۸ صفحه ۶۰ کې. ابن حبان ذکر کړي په صحيح خپل جلد ۷ صفحه ۲۹۹ کې. طيالسي ذکر کړي مسند خپل جلد ۱ صفحه ۲۳۷ کې. ابويعلي ذکر کړي په مسند خپل جلد ۱ صفحه ۳۵ کې.

## څوارلسم روايت :

ان النبي صلى الله عليه وسلم قد قبل عثمان بن مظعون رضي الله عنه بين عينيه بعد موته .

عثمان بن مظعون رضي الله عنه چې وفات شو نبي عليه السلام راغې دې يې په تندي باندې ښکل کړ .

دا حديث ابي داؤد ذکر کړی جلد ۲ صفحه ۹۵ :

حدثنا محمد بن كثير اخبرنا سفيان عن عاصم بن عبيد الله عن القاسم عن عائشة قالت

رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل عثمان بن مظعون رضي الله عنه وهو ميت حتى رأيت الدموع

تسيل .

اخرجه الطحاوي في شرح معاني الآثار جلد ۴ صفحه ۲۹۳ په باب تقبيل الميت کې ذکر

کړی .

واقر الالباني بصحة الحديث واخرجه الترمذي في سننه جلد ۴ صفحه ۱۹۶ . وقال حديث

عائشة رضي الله عنها حديث حسن صحيح .

او مصنف عبد الرزاق ذکر کړی په جلد ۳ صفحه ۵۹۶ کې ، الفاظ يې : مصنف

عبد الرزاق دادی :

ان رسول الله صلى الله عليه وسلم دخل على عثمان بن مظعون وهو ميت فأكب عليه فقبله ثم بكى

حتى رأيت الدموع يسيل .

## پنځلسم روايت :

ان يسار ابو بزه مولى عبد الله بن السائب المخزومي رضي الله عنه قد قبل رأس النبي

صلى الله عليه وسلم ويده ورجله .

دا حديث ذکر کړی : الرخصة في تقبيل اليد لابن المقري جلد ۱ صفحه ۲۶ کې سند

ذکر کوي :

حدثنا عبد الله بن محمد بن حيان حدثنا ابو خبيب العباس بن احمد بن محمد القاضي

البرقي حدثنا احمد بن محمد بن عبدالله بن القاسم بن نافع بن ابي بزة قال حدثني ابي محمد عن ابيه عن جده عن ابي بزة قال دخلت مع مولاي عبدالله بن السائب على رسول الله صلى الله عليه وسلم فقمت الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقبلت رأسه ويده ورجله .

زه وړیا خیدم د نبي علیه السلام سر مې ښکل کړ لاس او خپې مې هم ښکل کړي .

## شپاړسم روایت :

ان عائشة رضي الله عنها قد قبلت رأس النبي صلى الله عليه وسلم بنية الاكرام رواه ابن ماجه جلد ۱ صفحه ۲۸۲. او بیروتي چاپ جلد ۱۱ صفحه ۴۶۵ رقم د حدیث دي : ۳۹۹۲.

حدثنا ابو یوسف الصیدلاني محمد بن احمد الرقي قال حدثنا محمد بن سلمة عن الفزاري عن ابي شیبة عن عبدالله بن عکیم الجهني عن عائشة رضي الله عنها قالت سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم یقول : اللهم إني أسألك باسمك الطاهر الطیب المبارك الاحب الیك الذي اذا دعیت به اجبت واذا سئلت به اعطیت واذا استرحمت به رحمت واذا استفرجت به فرجت قالت وقال ذات یوم یا عائشة رضي الله عنها ! هل علمت ان الله قد دلني على الاسم الذي اذا دُعي به اجاب .

بي بي پوهه یې ما ته الله پاک علم راکړي دي د هغه اسم ښودنه یې راته کړي چې په کوم اسم باندې دعاء غوښتلې شي قبلوي یې یعنې اسم اعظم .

قالت فقلت یا رسول الله صلى الله عليه وسلم بأبي انت وامي فعلمنیه قال انه لا ینبغي لك یا عائشة رضي الله عنها.

تا ته مناسبه نه ده .

قالت فتنحیت وجلست ساعة ثم قمت فقبلت رأسه ثم قلت یا رسول الله علمنیه قال انه لا ینبغي لك یا عائشة ان اعلمك انه لا ینبغي لك ان تسألین به شیئاً من الدنیا قالت فقمت فتوضأت ثم صلیت رکعتین ثم قلت اللهم اني ادعوك الله وادعوك الرحمن وادعوك البر الرحیم وادعوك باسمائك الحسنی کلها ما علمت منها وما لم اعلم ان تغفر لي وترحمني قالت فاستضحك رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثم قال: انه لفي الاسماء التي دعوت بها.

دا کوم نو مونه چې تا واخيستل هغه نوم دي کې ده نو زمونږ استدلال فقبلت رأسه نه دی.

## اولسم روایت:

ان ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قد قبل يد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خمس مرات.

دا حدیث ذکر کړي: الرخصة في تقبيل اليد لابن المقري جلد ۱ صفحه ۲۷ رقم د حدیث: ۲۵:

حدثنا ابن حيان حدثنا ابراهيم بن محمد بن الحسن حدثنا محمد بن معاوية بن صالح عن عبدالرحمن بن مالك بن مغول عن ليث عن مجاهد عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

قال صنع رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الي معروفاً.

ما سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه بنیکړه وکړه.

فقبلت يد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خمس مرات.

په يو ځل مې پنځه واره لاس مبارک د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښکل کړ.

بعضې علماو نه چې پوښتنه وشي چې لاس ښکلول څنګه دي جواب يې داوي چې جائز دي خو سنت مستمره نه دي دا لفظ چې سنت مستمره نه دي دا يې ابن تيميه نه دي ياد کړي بعضې علماو باندې د ابن تيميه تاثير شوې وي.

## اتلسم روایت:

ان فاطمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قد قبلت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنية الاكرام.

دا حدیث سنن الکبری للبیهقي جلد ۷ صفحه ۱۰۱ کې ذکر کړي:

اخبرنا ابو عبدالله الحافظ وابو بكر احمد بن الحسن القاضي قالا حدثنا ابو العباس محمد بن يعقوب حدثنا محمد بن اسحاق الصغاني حدثنا عثمان بن عمر حدثنا اسرائيل عن ميسرة بن حبيب عن المنهال بن عمرو عن عائشة بنت طلحة عن ام المؤمنين عائشة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا انها

قالت ما رأيت احداكان أشبه كلاماً وحديثاً من فاطمة برسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وكانت اذا دخلت عليه رحب بها وقام اليها فأخذ بيدها فقبلها واجلسها في مجلسه وكان اذا دخل عليها.

کله به چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې کورته ورغي؛

رحبت به وقامت فاخذت بيده فقبلته.

فاطمې بي بي به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لاس ښکل کړل.

دا حديث حاکم في المستدرک على الصحيحين جلد ۱۱ صفحه ۴۰ کې ذکر کړي.

وقال هذا الحديث صحيح على شرط الشيخين.

امام طبراني ذکر کړي معجم الاوسط جلد ۴ صفحه ۲۴۲ کې، او محمد بن ابراهيم المقري ذکر کړي په الرخصة في تقبيل اليد جلد ۱ صفحه ۲۸ کې.

## نولسم روایت:

ان ابا الهيثم بن التيهان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قد قبل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنية الاکرام.

دا حديث ذکر کړي معرفة الصحابة لابي نعيم جلد ۱۷ صفحه ۱۸۰:

حدثنا ابوبکر بن خلاد حدثنا محمد بن غالب حدثنا سليمان بن داؤد المنقري حدثنا عبدالحکيم بن منصور عن عبدالملک بن عمير عن ابي سلمة عن ابي الهيثم بن التيهان ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لقيه فاعتنقه وقبله والتزمه وقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المستشار مؤتمن.

دا حديث محمد بن ابراهيم المقري په الرخصة جلد ۱ صفحه ۳۰ کې هم ذکر کړي.

## شلم روایت:

ان سلمان الفارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قد قبل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنية الاکرام.

دا حديث معجم الکبير د طبراني جلد ۶ صفحه ۳۹ کې ذکر کړي، دې کې د خپل ايمان قصه ذکر کوي چې زه راغلم په څه شکل مې ايمان راوړ:

فقلت هذه الامارة دلوني على صاحبكم فجئته فقلت تحملني الى المدينة قال ما تعطيني قلت ما اجد شيئاً اعطيك غير اني لك عبد فحملني فلما قدمت جعلني في نخلة فكنت أسقي كما يسقي

البعير حتى دبر ظهري وصدري من ذلك ولا اجد احدا يفقه كلامي حتى جاءت عجوز فارسية تسقي فكلمتها ففهمت كلامي فقلت لها اين الرجل الذي خرج دلني عليه قالت سيمر عليك بكرة اذا صلى الصبح من اول النهار فخرجت فجمعت تمراً فلما اصبحت جئت فقربت اليه التمر فقال ما هذا صدقة ام هدية فأشرت انه صدقة قال انطلق الى هؤلاء واصحابه عنده فاكلوا ولم يأكل فقلت هذه الامارة فلما كان من الغد جئت بتمر فقال ما هذا فقلت هذه هدية فأكل ودعا اصحابه فأكلوا ثم رآني اتعرض لأنظر إلى الخاتم .

ما ته يې كتل چې زه يو خوا بل خوا تاويدم مقصد مې دا وه چې :

لأنظر الى الخاتم . چې وګورم مهرِ نبوت يې .

فعرف . نبي عليه السلام پوه شو په ما .

فالق رداءه . څادر يې وغورځوه .

فاخذت اقبله والتزمه . زه شروع شوم مهرِ نبوت مې ښکلوه او نبي عليه السلام مې په غېږ کې نيولې وه ځان ته مې راجختوه .

فقال ما شأنك ؟ څه حال دي ستا .

فسألني فاخبرته خبري .

ټوله قصه مې ورته بيا نکړه چې زه غلام شوې يمه پردې راغلې يم تاسو پسې .

فقال اشترطت لهم انك عبد اشتر نفسك منهم فاشتراه النبي صلى الله عليه وسلم .

نو دې ځای نه استدلال دي :

فاخذت اقبله والتزمه .

دا حديث ذکر کړي مجمع الزوائد جلد ۹ صفحه ۳۱۶ کې .

## يويشتم روايت :

ان النبي صلى الله عليه وسلم قد قبل عمه عباس رضي الله عنه بين عينيه .

دا حديث ذکر کړي معجم الاوسط د طبراني جلد ۲۰ صفحه ۲۱ :

حدثنا النعمان بن احمد حدثنا احمد بن رشد بن خثيم الهلالي حدثني عمي سعيد بن خثيم عن حنظلة بن ابي سليمان عن طاؤس عن عبد الله بن عباس حدثتني ام الفضل بنت الحارث الهلالية قالت مررت بالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وهو جالس بالحجر فقال يا ام الفضل قلت لبيك يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال انك حامل بغلام .

دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اخبار عن الغيب کوي ، ته په يو هلک حامله يې .

قلت يا رسول الله وكيف وقد تحالفت قريش ان لا ياتوا النساء .

قسمونه خوړلي قريشو چې بي بيانو ته نزديکت به نه کوي .

قال هو ما اقول لك . ما چې درته څه ووېلې دغسې به کيږي .

فاذا وضعتيه فأتني به . که ماشوم دې پيدا شو ما ته يې راوله .

قالت فلما وضعته أتيت به النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فأذن في اذنه اليمنى واقام في اذنه اليسرى والبأه من ريقه .

ورېې کړي په خوله کې لاړې مبارکې تحنيک شو .

وسماه عبد الله ثم قال اذهبي بأبي الخلفاء .

دا يې مخکې نه پيش ګوي وکړه څکه بنو عباس وروسته ټول خلفاء ، امراء راغلي وه اشاره يې ورته وکړه .

قالت فأتيت العباس فاعلمته وكان رجلاً لباساً جميلاً موتئد القامة فتلبس ثم أتى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فلما راه النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يې دا تره راغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته پاڅيده ګورئ د تعظيم لپاره قيام هم ثابت شو .

فقبل ما بين عينيه . ښکل يې کړ په تندي باندې .

ثم اقعده عن يمينه ثم قال : هذا عمي فمن شاء فليباه بعمه .

دا حدیث ذکر کړي علامه هیثمي په مجمع الزوائد جلد ۹ صفحه ۲۲۳ کې .

دوه ویشتم روایت :

ابن اعرابي په القبل والمعانقة والمصافحه جلد ۱ صفحه ۱۵ کې یو مرفوع حدیث پیش کوي :

حدثنا احمد بن موسی السعدي قال حدثنا عمر بن ابراهیم الکردي قال حدثنا مندل عن سعید بن مرزبان عن مقسم عن الحسین بن علي علیه السلام قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم تقبیل المسلم ید اخیه المصافحة .

بنکلول د یو مسلم لاس د ورور خپل لره دا تتمه د مصافحې ده دا من المصافحه ده لکه مصافحه چې د مندوباتو نه ده تتمه د مصافحې په تقبیل د لاس د اخیه کې ده .

دا مرفوع حدیث شو خو د تعجب خبره داده چې رحمت عالم دنیا نه تُخي او د حضرت حسین رضي الله عنه عمر پنځه کاله وه نو دا څومره ذهین انسان دي چې پنځه کلن دي او د نبي علیه السلام الفاظ یې زده کړي ده ته خو یې خبرې نه دي کړي خبرې یې بل چا ته کړي خو دې هغه مجلس کې ناست دي او ده یادې کړې دي دا کمال ذهانت دده وه .همدا وجه ده محدثین وایي چې عمر د تحمل الحدیث پنځه کاله دي دا دده له وجهې وایي او د حضرت حسین رضي الله عنه دوه حدیث مروي دي او دواړه صحیح هم دي مقبول دي محدثینو ته .

درویشتم روایت :

ان ازهر بن حرام الاشجعي قد قبل کف النبي صلی الله علیه وسلم .

دا حدیث مذکور دي په معجم الکبیر جلد ۵ صفحه ۲۷۴ کې :

حدثنا علي بن عبد العزیز حدثنا شاذ بن الفیاض حدثنا رافع بن سلمة قال سمعت ابي یحدث عن سالم عن رجل من اشجع یقال له زاهر بن حرام الاشجعي قال وکان رجلاً بدویا لا یأتي النبي صلی الله علیه وسلم اذا اتاه إلا بطرفة او هدیة یهدیها .

بغیر د تحفې نه به نه راتلو .

فرآه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالسوق.

وليد نبي عَلَيْهِ السَّلَام ده لره په يو بازار کې.

يبيع سلعة. چې سامان خرڅوي.

ولم يكن أتاه. په دغه ورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته دې نه وه راغلې.

فاحتضنه من ورائه بكفيه. شاه خوا نه يې ونيوه نبي عَلَيْهِ السَّلَام.

ورغي او دې ولاړ دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام په ستر گو ورته لاسونه کيخودل ستر گې يې پرې پټې کړې شاه خوا نه، هغه سوچ کوي چې دا څوک ده چې ما سره دا مزاح کوي يو خوا بل خوا التفات کوي خو پيژني يې نه دلته خو دا راځي:

فالتفت وابصر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نور څه روايتونو کې راځي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام يې له لاسونو نه وپيژنده.

فقبل كفيه. لاسونه يې ورته ښکل کړه.

بيا شو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې نيولې دي آواز کوي:

من يشتري العبد. څوک غلام اخلي.

قال اذن تجدني يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كاسداً.

ووېل ده چې مونده به کړي ما يارسول الله کو ته زه خو څه ډير رېو والانه يم، دې له رنګ نه ښائسته نه دي يعني غلام خو دې شوم خرڅ مې کړه خو زه ډير ښائسته نه يم څوک به په ما باندې ډيرې روپۍ در نه کړي.

قال ولكنك عندالله ربيح.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي ته د خدای تعالی په نزد ډير قيمتي يې.

نو استدلال د فقبل كفيه نه کوو.

دا حديث مذکور دي په معرفة الصحابة جلد ۸ صفحه ۴۱۲ کې، او علامه هيثمي په مجمع الزوائد جلد ۹ صفحه ۳۵۷ کې ذکر کړي، ابن عربي هم ذکر کړي په القبل والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۱۷ کې.

# دوهم مبحث : د صحابه کرامو رضي الله عنهم عمل په خپل مینځ کې :

## اول روایت :

کان علي رضي الله عنه یقبل ید العباس رضي الله عنه ورجلیه .

حضرت علي رضي الله عنه د خپل تره حضرت عباس رضي الله عنه لاس او خپې ښکلول .

دا حدیث ذکر کړي ادب المفرد د امام بخاري جلد ۱ صفحه ۳۲۸، ۳۲۹ کې :

حدثنا عبد الرحمن بن المبارك قال حدثنا سفیان بن حبیب قال حدثنا شعبة قال حدثنا عمرو عن ذكوان عن صهيب قال رأيت علياً يقبل يد العباس ورجليه .

دا حدیث په باب د تقبیل الرجل کې را اخلي .

دې حدیث باندې الباني څه تحقیقات کړي دي :

قال الباني في ذيله ضعيف الاسناد موقوف .

یو خو دا موقوف دي او ضعیف دي سنداً .

مونږ جواب کوو :

قلنا قوله مردود على عقبيه لان رجال السند كل ثقات .

اول راوي عبد الرحمن بن المبارک ابن عبد الله العیشي التخاوي دي .

یقال السدسي ابوبکر یقال ابو محمد البصري الخلقاني .

طبقه دده لسمه وه د کبار الاخذین عن تبع الاتباع وفات یې په ۲۲۸ کې شوې روا له بخاري ابوداؤد والنسائي دي د رجال البخاري نه دي نو په دده کې خو ضعف نشته رتبه یې په نزد ابن حجر ثقه دي او رتبه یې په نزد د ذهبي قال ابو حاتم ثقة همدا وجه دده ابن حبان یې په کتاب الثقات کې ذکر کوي .

سند کې دویم راوي سفیان بن حبیب رضي الله عنه البصري ابو محمد البزاز طبقه یې نهمه دده له اصغارو د اتباع تابعینو نه دي .

روا له البخاري في ادب المفرد وابوداؤد والترمذي وابن ماجه والنسائي شیخ الکل رتبه یې

په نزد د ابن حجر ثقة رتبه يې په نزد د ذهبي ثبت په سند کې دريم راوي حدثنا شعبة بن حجاج الورد عتکي ثم البصري . طبقه يې اومه ده من کبار اتباع التابعين رواه البخاري مسلم وابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة شيخ الکل رتبه يې په نزد د ابن حجر ثقة حافظ متقن سفيان ثوري به وويل هو امير المؤمنين في الحديث او رتبه يې په نزد امام ذهبي امير المؤمنين في الحديث ثبة حجة يخطئ في الاسماء قليلاً .

دده او د سفيان ثوري مينځ کې فرق دا وه سفيان ثوري د اسماء الرجال لوي حافظ وه او دې د حديثو طوالو حافظ وه دې په متن کې د هغه نه مخکې وه هغه په سند کې له ده نه مخکې وه نور دواړه دیو استاذ شاګردان وه څلورم راوي په سند د تیر شوي حديث کې عمرو بن دينار المکي ابومحمد الاکرم الجمحي مولى موسى بن بازم طبقه يې څلورمه ده د استاذ تابعينو نه دي روى له البخاري مسلم وابي داؤد والترمذي والنسائي وابن ماجه شيخ الکل دي له رجالو د بخاري او مسلم نه دي رتبه په نزد ابن حجر ثقة عند الذهبي رتبه امام.

په سند کې پنځم راوي ذکوان ابوصالح السمان الزياد المدني دده طبقه دريمه ده له استاذ تابعينو نه دي روى له البخاري مسلم وابي داؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة ، رتبه يې په نزد د ابن حجر ثقة ثبة عند الذهبي من الائمة الثقات .

په سند کې شپږم راوي صهيب دي يقال صهبان مولى العباس بن عبد المطلب طبقه يې دريمه ده استاذ د تابعينو روا له البخاري في الادب المفرد رتبه يې په نزد ابن حجر صدوق وذکر ابن حبان في کتاب الثقات .

اوس دې کې په کوم راوي جرحه ده دا نور راويان خو رجال البخاري دي يو صهيب پاتې دي هم د رجالو د بخاري نه دي خو په ادب المفرد کې او ابن حبان ذکر کړي په ثقاتو کې.

فعلم من ذلك تعصب الالباني . د الباني تعصب معلوم شو .

چې د خپلې راى مخالف حديث وګوري ضعيف ورته وايي :

مع انه ليس اهل لتصحيح والضعيف . الباني د تصحيح او د تضعيف اهل نه دي .

لان الشرط اهلية التصحيح والتضعيف الحفظ والالباني ليس بحافظ الحديث.

شرط د تصحيح او تضعيف داده چې دا به هغه سړي وي چې حافظ به وي د حديثو او. الباني حافظ نه دي.

كما أقر به في عدة المواضع لما لهم ولا تكن من الغافلين.

الباني په خپله اقرار كړي چې زه حافظ د حديثو نه يمه، كمپيوټر ته به ناست وه كتابونه به يې كتل غم دا وه چې دا شامله او د كمپيوټر دا مكتبې چې وي دا تقريباً ۲۵ كاله مخكې الباني او دده شاګردانو جوړې كړې د يهودو په مرسته او كوششونو دوي ته يې آسانه كړي او دا يې ورته برابرې كړي او دوي ورته كيناستل او په هر كتاب ولړيدل نو چې اوس عربو ته لاړ شي هلته به ته مكتبو كې وګوري صحيح ابي داؤد ضعيف ابي داؤد چې دلته پاكستان كې كوم ابي داود دي دا غټ هلته دا نشته دي وړوكې ابوداؤد دي هغې ته صحيح ابي داؤد وايي د الباني جوړ شوې كتاب دي.

بيا لټوه صحيح ترمذي ضعيف ترمذي دا كومه ترمذي چې دلته ده دا هلته نشته يو وړوكي كتاب يو څو احاديث يې په كې راغونډ كړي د الباني په رأی موافق احاديث صحيح هغه نور يې رد كړي همداسې صحيح ابن ماجه ضعيف ابن ماجه صحيح نسائي ضعيف نسائي داسې ټول صحيح ترغيب الترهيب صحيح احياء العلوم داسې دا ټولو كتابونو كې يې كار كړي هغلته به هغه كتابونه پيدا كيږي چې كوم د الباني وي دا نور كتابونه ختم شوي نه پيدا كيږي.

هلته د الباني عظيمه چرچه ده او بيا يې آخر كې جرأت وكړو او كتاب يې وليكه صحيح مسلم، ضعيف مسلم، بس چې دا يې څنګه وليكه علماء د عربو پسې راپاڅيدل تر دې وخت يې ده ته غټ ملا ويلې خلكو ته پته نه وه چې دې كمپيوټر ته ناست دي خلكو ويلې ګنې دا حافظ دي او دومره ماهر دي چې په هر حديث او هر راوي جرحې كوي.

او هر څوك چې كمپيوټر ته كيني دا كار كولې شي دا قصه خوانې كې چې كوم كتابونه مونږ اخلو او دا تخريجونه پرې شوي دي د پاسه دا چا چې دا تخريجات كړي دا يو هم ملا نه دي ټولو معهدونه ويلې كمپيوټر يې ياد كړي شاملې يې مخې ته وي راړي را اخلي اسماء الرجال كتاب پرې ګوري چې بل چا څه ويلې دي بس ګرز ور كړي بيا خاصتاً چې دده د رأی

مخالف وي هغه حديث خو هسې هم مردود وي .

يو تحقيق د حافظ العراقي دي هغه مخکينې دي په احياء العلوم باندې او بل دې مصرينو کې چې دي ابو غده تحقيق د ابو غده دا بيا گذاره کوي او بعضې تحقيقات حافظ الکوثري کړي دي هغه مخکې شوې دي د کمپيوټر زمانه ، نه وه د حفظ نه يې کړي او هغه محقق دي او دا نور چې کله هم کتاب اخلي تخريج والا مه اخلي ځکه دا تخريجات د وهابيانو دي او کالجيانو معهديانو کړي دي محققين نه دي نو الباني کتاب وليکه صحيح مسلم ضعيف مسلم .

دغه وخت کې بيا د مدينې منورې د يونيورسټي د ترمذي استاذ هغه کتاب پرې وليکه په نوم د تنبيه المسلم على تعدي الالباني على صحيح المسلم ، چې الباني په امام مسلم تعدي وکړه چې دا په اتفاق د امت سره صحاح سته دي او په دې کې بيا دا دوه صحيحين دي په دې کې ضعيف روايات ډير کم دي او دې ولړيده صحيح مسلم ضعيف مسلم او که خلکو دې پرېښې وې صحيح بخاري ضعيف بخاري يې هم جوړولو دې ته هم ورنږدې شوې وه .

خو چې کله د عربو علماو پسې قلم پورته کړو نو سړي يې پسې واخيسته ما ته په مکه معظمه کې يو عربي شيخ وويل ما ته يې دعوت کړې وه او هغه ډير کلک عالم هم وه ځکه هغه په انگلش پوهيده او د بهر ملکونو نه په چې استفتاءات راتلل حرم ته د هغې جواب کننده دغه شيخ يوسف وه .

او بل په جده کې د کلياتو يو غټه اداره وه د لغاتو هغه کې دي استاذ هم وه هفته کې به يې دوه ورځې درس هلته کوه نو دغه شيخ يوسف راته د الباني ذکر وکړه چې ما ته د مدينې منورې د هغه يونيورسټي هغه شيخ الحديث چې کوم په امام مسلم الباني رد کړې وه او دې شيخ الحديث بيا کتاب وليکه هغه واي راته حکايت وکړه چې د مدينې د يونيورسټي هغه علماء چې وهابيان وه هغوي تلاش وکړو چې موږ الباني د مدينې منورې يونيورسټي ته راولو او بيا يې د مدينې د مسجد خطيب کوو په دې تلاش کې شول او الباني ته يې دعوت ورکړو چې عربو ته راشي .

دا شيخ الحديث وايي وويل چې زه هم په يونيورسټي کې وم او له ده سره وايي وران هم وم ځکه ده د الباني په رد کې کتاب ليکلې وه نو حذيفي چې خطيب د مسجد نبوي دي کلک

اهل حدیث دي وهابي دي نو حذيفي او دده ملګرو ډير قدريې ورکړو البانې ته او ډير عزت يې وشو په ټوله مدينه منوره کې خبره خوره وه چې الباني راغلې دي د ملاقات لپاره په خلک راتلل په دغه کال زمونږ يو ملګري هم دغه يونيورسټي کې سبق ويلې.

يوه ورځ وايي مانځه کې ورسره خوا کې ودريدم ما رفع اليدين ونه کړو وايي دې دومره متشدد وه چې په مانځه کې ما نه روان شو او مخکې صف يې په لاسونو جدا کړل ځان يې هلته ځای کړو چې زه له ده سره نه ودريږم ځکه رفع اليدين نه کوي.

ما ته زما دا ملګري دا قصه کوله چې ما رفع اليدين ونه کړو مانځه کې رانه روان شو مخکې صف کې يې ځان داخل کړو نو بيا د حرمينو امامان چې دي د شاهانو د اجازې نه بغير نه مقررېږي او دا دومره غټه رتبه ده په سعودي کې چې دومره رتبه دوزير هم نه وي وزارت اسان ده خو د حرمينو امامت په آسانه، نه حاصليږي او هغوي پوره تحقيق او تلاش هم دې کې کوي چې د عمل په لحاظ هغه سړي روغ وي.

نو دې مشائخو الباني ته وويل چې کله شافهد مديني منورې ته راشي مونږ به تاته موقعه د تقرير درکړو او ته به تقرير وکړي دې به خپلو خبرو نه متأثر کړي نو بيا به مونږ پيش کش وکړو چې صيب ده ته اجازت ورکړي چې کليه کې داخل شي دلته په يونيورسټي کې شيخ شي بيا به په مرور د وخت سره تا مسجد نبوي کې مونږ خطيب کړو.

حديث کې راځي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي:

المدينة كالكير تنفى الخبث. مدينه منوره چې ده دا د آهنګر بټې ده خبث زنګونه مرداريانې ختموي.

خپله هغه چيرته داسې مردار ځان سره پريښنو دل وايي چې څنګه مسجد نبوي کې شوري جوړه شوه په دې کې شاه فهد او نور ارکان ناست دي نو وايي الباني ته موقعه ورکړل شوه چې دا عالم ده ميلمه ده لږ بيان به وکړي دې پاڅيده چې کله يې بيان وکړو شاه فهد ډير ورته متوجه وه په آخره کې دده له خولې نه دا خبره ووتله چې مونږ ملک فهد ته يو پيشکش لرو او هغه دا دي چې دا روضه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مسجد نبوي کې داخله ده ته کوشش وکړه چې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې ځای نه وباسي او جنت البقيع کې يې دفن کړي ځکه دې مسجود د زرګونه خلکو ګرځيدلې دي وروسته خلک ده پسې مونځ کوي او خلک دې قبر ته سجدې

کوي د ټولو خلکو مونځونه خراب شول.

چې څنګه یې وایي دا خبره له خولې نه ووتله نو ملک فهد ورته اشاره وکړه چې خاموش شه بیا ده کې خو نور جرأت نه وه غلې شو دعاء ته یې هم پرې نه خود وایي کینه.

حذیفي او ده ملګرو ته یې وویل چې تاسو ددې انسان پیشکش ما ته کوي چې څه د پاسه ۱۴۰۰ کاله دا امت تیر شوې دي یو عالم هم نه پیدا کیدو چې نبي عليه السلام یې دې ځای ته ایستلې واي دا په زمانه د عبد الملک بن مروان کې دخیل في المسجد کړځیدلې دي دا دومره امت پیغمبر عليه السلام ته سجده کړې ده دا ټول مشرکین تیر شوې.

ډیر زیات غصه شو بیا یې ۲۴ ساعته وخت ورکړو چې سعودي عرب کې الباني ونه ګورم تاسو یې راته صفت کړې کنه دده سر د پریکولو دي او بیا یې سیاسي پابندي پرې ولږوله چې د حج او عمرې لپاره دې هم الباني دې ملک ته نه راځي همغه وه چې وې شړه او الباني یې په سعودي عرب بند کړو.

خو چونکې په عربو کې اشاعت د وهابیانو ډیر دي نو هغه مکتبو کې او هغه خو سیاسي خلک دي شاهان نور دې ته متوجه نه دي چې دا ستاسې زیر تحت تعلیم او تربیه کوم اشاعت کوي هغه اشاعت چې روان دي نو د الباني کوشش او سعیه روانه ده نو ټول سعودي کې د الباني قبضه ده هر څوک الباني پیژني نور یو امام هم نه پیژني چې حدیث ورته پیش کړې وایي الباني دې باره کې څه وایي نو دومره مقرب ده هغه خلکو کې.

نو الباني دا مخکې حدیث ته ضعیف ویلې دي خو ما د هغې تحقیق د رجالو تاسو ته ذکر کړو چې دا تعصب د الباني دي.

## دویم روایت:

ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه قبل ابا المسلم الخولاني رضي الله عنه بين عينيه.

عمر فاروق رضي الله عنه ښکل کړو ابا مسلم خولاني په تندي باندې.

دا حدیث حلیة الاولیاء ذکر کړي جلد ۲ صفحه ۱۲۹ کې، اسودي عنسي چې ورته وایي د پیغمبري دعوی یې کړې وه ابي مسلم خولاني پسې څوک ولیږل ورته یې وویل:

أتشهد ان محمد صلى الله عليه وسلم رسول الله؟ قال: نعم: قال فتشهد اني رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قال ما اسمع.

گواهي کوي چې زه هم رسول الله يمه ابي مسلم ورته وويل دا ما نه دي اوريدلي.

قال: فامر بنار عظيمة فأججت. يو غټ اور يې بل کړو هغه ښه په لمبو کې شو.

وطرح فيها ابو مسلم فلم تضره. ابو مسلم خولاني يې دې اور ته واچوه اور تکليف ورنه کړو ابي مسلم ته دا دده کرامت وه.

فقال له اهل مملكته ان تركت هذا في بلدك افسدها عليك.

دا وشړه جلا وطن يې کړه ګني دا علاقه به درته خرابه کړي.

فأمره به بالرحيل فقدم المدينة وقد قبض رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واستخلف ابوبكر فعقل راحلته على باب المسجد وقام الى سارية من سواري المسجد يصلي اليها فبصره به عمر بن الخطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فاتاه.

عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته راغي.

فقال من اين الرجل. دا څوک دي.

قال من اليمن. د يمن نه راغلې.

آوازه راغلې وه چې ابو مسلم خولاني رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يو صحابي دي او اسود عنسي اور ته غورځولې خو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يې نه پيژني چې هغه دا سړي دي نو تپوس ترې کوي:

قال فما فعل عدو الله بصاحبنا الذي حرقه بالنار فلم تضره.

قصه راته وکړه چې عدو الله چې اسود عنسي وه زمونږ ملګري هغه چې اور ته يې غورځولې وه او ر تکليف نه وه ورکړې څه يې ورسره کړي وه.

قال ذاك عبدالله بن ثوب. خپل نوم يې واخيست ابامسلم يې کونيه وه.

قال نشتدك بالله انت هو؟. قسم درکوم هغه ته يې.

قال اللهم نعم. قال فقبل ما بين عينيه.

په تندي يې ښکل کړو.

ثم جاء به حتى اجلسه بينه وبين ابي بكر وقال الحمد لله الذي لم يمتني من الدنيا حتى اراني في امة محمد صلى الله عليه وسلم من فعل به كما فعل بابراهيم خليل الرحمن عليه السلام.

هغه ذات لره ثناء ده چې تر هغې پورې مړ نه کړمه چې ما په امت د نبي عليه السلام کې هغه خلک وليدل چې هغوي سره کفارو هغه ظلم وکړو کوم چې ابراهيم عليه السلام سره نمرود کړې وه هغه اور نه وه سوځولې معجزه دي هغه ده دي او رونه سوځوه کرامت ده ده شو.

## دريم روايت:

ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه قبل رأس ابي بكر رضي الله عنه.

ابن ابي الدنيا کتاب ليکلي په نوم د الاخوان جلد ۱ صفحه ۱۶۵:

حدثنا ابوطالب عبد الجبار من عاصم حدثنا عبيد الله بن عمر عن بصيرة عن الحسن عن ابي رجاء العطاردي قال: قدمت المدينة فرأيت عمر يقبل رأس ابي بكر رضي الله عنهما.

راغلمه عمر فاروق رضي الله عنه مې وليد چې د صديق اکبر رضي الله عنه سرېې بنکلوه.

دا حديث امام سيوطي رحمه الله په جامع الاحاديث جلد ۲۵ صفحه ۳۰۷ کې ذکر کړې دي.

## څلورم روايت:

ان اباعبيدة رضي الله عنه قبل يد عمر بن الخطاب رضي الله عنه.

دا حديث الاخوان لابن ابي الدنيا جلد ۱ صفحه ۱۵۵ کې ذکر کړې فرمايي:

حدثنا علي بن الجعد قال اخبرني عبد الملك بن حسين عن زياد بن فياض عن تميم بن سلمة ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه لما قدم الشام استقبله ابو عبيدة رضي الله عنه فنزل فقبل يده.

عمر فاروق رضي الله عنه چې کله شام ته راغې مخې ته ابو عبيدة رضي الله عنه ورته راغې راکوز شو لاس يې ورته بنکل کړو.

همدغه حديث امام بيهقي په سنن کې ذکر کوي جلد ۲ صفحه ۳۴۷ د هغې الفاظ دادي:

لما قدم عمر رضي الله عنه الشام استقبله ابو عبيدة بن جراح رضي الله عنه فقبل يده ثم خلوا يبكيان .

دواړو ژړل د ډير محبت نه .

قال فكان يقول تميم تقبيل اليد سنة .راوي وايي چې تميم رضي الله عنه به ويل :

تقبيل اليد سنة . د نيكانو لاس ښكلول سنت دي .

همدا حديث امام بيهقي په شعب الايمان جلد ۱۸ صفحه ۴۷۵ کې ذكر كړي. ابن اعرابي په قبل والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۹ کې ذكر كړي .

## پنځم روايت :

ان زيد بن ثابت رضي الله عنه قبل يد عبدالله بن عباس رضي الله عنهما .

دا حديث ذكر كړي په الرخصة في تقبيل اليد لابن المقري جلد ۱ صفحه ۳۲ کې :

حدثنا محمد بن علي نا ابو يشجب يعرف ابن خيران نا علي بن محمد بن شبيب نا احمد بن علي بن زيد نا الحسن بن داؤد الاحمر حدثنا حماد بن سلمة عن عمار بن ابي عمار ان زيد بن ثابت ركب يوما .زيد بن ثابت رضي الله عنه يو ورځ سپور شو په آس يا په اوښ باندې .

فاخذ ابن عباس بركابه .ابن عباس رضي الله عنه ورته هغه ركاب ونيوه خدمت کې ولاړ دي دده خپې ته ركاب جوړوي .

فقال تنح يا ابن عم رسول الله صلى الله عليه وسلم .

زيد ابن ثابت رضي الله عنه ورته وايي يو طرف ته شه لرې شه دې ځاى نه يعنې د آس ركاب ما ته مه نيسه ته د نبي عليه السلام د تره زامنو کې يې .

فقال : هكذا امرنا ان نفعل بعلمائنا وكبرائنا .مونږ ته امر د شريعت د غسې دي چې مونږ آداب د علماو كوو ته عالم يې زيد ابن ثابت عالم وه په ميراثو کې چې دوي آس ته خيژي علماء او مشران مونږ به ركاب ورته نيسو .

فقال زيد أرني يدك . زيد ابن ثابت رضي الله عنه ورته وايي لاس دې راكړه .

فاخرج يده. لاس یې ورته راوویسته.

فقبلها. حضرت زید رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه لاس ښکل کړو.

فقال: هکذا امرنا ان نفعل باهل بيت نبينا صلى الله عليه وسلم.

مونږ ته هم امر دي چې مونږ اهل بيت نبوي سره داسې عمل وکړو او ته د اهل بيت نبوي نه يې او ابن عباس رضي الله عنه د حضرت زيد رضي الله عنه نه په عمر کې کشر وه ابن عباس رضي الله عنه د حضرت زيد رضي الله عنه لاس ښکل کړو د شرافت علمي نه او حضرت زيد رضي الله عنه د ابن عباس رضي الله عنه لاس ښکل کړو له شرافتِ نسبي نه.

دا حديث ذکر کړي ابن عساکر په تاريخ خپل جلد ۱۹ صفحه ۳۲۵، امام سيوطي رحمه الله ذکر کړي په جامع الاحاديث جلد ۳۵ صفحه ۴۸، ابن بطال ذکر کړي په شرحه د بخاري جلد ۹ صفحه ۱۹۴ کې، علامه مناوي ذکر کړي په فيض القدير على جامع الصغير جلد ۲ صفحه ۲۸ کې، بدر الدين عيني ذکر کړي په شرحه د بخاري جلد ۲۲ صفحه ۱۲ کې.

## شپږم روایت:

ان عمر و جمع من الصحابة رضي الله عنه قبلوا رأس عبدالله بن حذافة رضي الله عنه.

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او د صحابه وو يوه ډله د عبدالله ابن حذافه رضي الله عنه سر ښکلوي.

له څه وجې يې ښکلوي وجه يې دا وه چې عبدالله بن حذافه ديو لوي لښکر سره امير المؤمنين رضي الله عنه په طرف د روميانو وليږه.

فاسره الروم فذهبوا به الى ملكهم فقالوا ان هذا من اصحاب محمد فقال له الطاغية.

باچا ورته وويل:

هل لك ان تتنصر و أشركك في ملكي وسلطاني.

بيا به تا شريک کړم په بادشاهي او سلطان کې، نصراني شه.

فقال له: عبدالله لو اعطيتني جميع ما تملك وجميع مملكة العرب على ان ارجع عن دين

محمد صلی الله علیه وسلم طرفة عين ما فعلت .

كه ته ټوله بادشاهي راكړي او عرب چې څومره دي دا ټول هم راكړي وابه نه ورم له دين د محمد صلی الله علیه وسلم نه د سترګو رپ قدري به ترې هم اخوا نه شم دا كار به ونه كړم ، بادشاه ورته وايي : اذاً أقتلك . بيا به دې مړ كړم .

قال انت وذاك . ته او دغه كار كوه كنه مړ مې كړه درسره يمه .

قال فامر به فصلب . امر يې وكړو چې دا زوړند كړي .

وقال للرماة . وي ويل غشي ويشتونكو ته :

ارموه قريباً من يديه قريباً من رجليه . وي وولې په لاسو او خپو په سينه يې مه ولې په لاسو او خپو په غشو ويشتل كيږي بادشاه ورته ولاړ دي .

وهو يعرض عليه وهو يأبى . ورته وايي نصراني شه او هغه انكار كوي .

ثم أمر فأنزل . امر يې وكړ وايي راكوزيې كړي .

ثم دعا بقدر وصب فيها ماء حتى احترقت . يوه غټه كټوي راوړه هغې كې اوبه واچولې تر دې چې اوبه ګرمې شوې وه خوټيدې .

ثم دعا باسيرين من المسلمين . د دې مسلمانانو نه دوه بنديان يې راوستل هغوي ته يې نصرانيت پيش كړو هغوي انكار وكړو .

خپلو فوجيانو ته يې وويل دا دې ګرمو اوبو ته واچوي .

فلما ذهب به بكى . كله چې هغه مسلمانان دې ګرمو اوبو ته راولې وي ژړل .

فقيل له إنه قد بكي . چا بادشاه ته وويل هغه سړي چې دې ګرمو اوبو ته غورزوو ژاړي .

فظن انه رجع . كيدې شي نصراني شي .

فقال ردوه فعرض عليه النصرانية فأبى . ده ورته نصرانيت پيش كړه هغه انكار وكړه .

قال فما ابكاك؟ نو ژاړې ولې .

قال ابكاني اني قتلت هي نفس واحدة تلقى هذه الساعة في هذا القدر فتذهب فكنت اشتهي

أن يكون بعدد كل شعرة في جسدي نفس تلقى هذا في الله عزوجل.

ژړا مې دې باندې د دې چې زما يو نفس دى اوس كړايي ته غورځيږي نو شهيد كيږي كاش زما په وجود چې څومره ويښتان دي د هر ويښته بدل كې زما تنې واى چې دومره ځايه شهيد شوې واى په دې ژاړم.

قال له الطاغية هل لك ان تقبل رأسي واخلي عنك؟ عبد الله بن حذافه رضي الله عنه يې راووست بادشاه ورته وويل كه زما سر د تعظيم لپاره ښكلوې نو زه به دې خوشې كړم.

قال عبدالله وعن جميع اسارى المسلمين؟ سر دې ښكلوم يو اځې ما خوشې كوې كه دا ټول مسلمانان.

قال عبدالله: فقلت في نفسي عدو من اعداء الله. د خداى غټ دشمن.

فأقبل رأسه. سر ښكلوم.

يخلي عني وعن اسارى المسلمين لا ابالي. خوشې به كړي ما او ټول مسلمانان خير دې باك نه كوي.

قال فدنا منه وقبل رأسه. ورنږدې شو دې بادشاه ته سر يې ورته ښكل كړو.

فدفع اليه الاسارى. بنديان يې وركړل راخوشې شول.

مدينه منوره كې آوازه شوه يو بل ته به يې سترګې وهلې ويل به يې چې عبد الله بن حذافه هغه سړې دې چې د كافر سر يې ښكل كړې.

فقدم بهم على عمر فاخبر عمر بخبره. چا عمر فاروق رضي الله عنه خبر كړ چې عبد الله بن حذافه رضي الله عنه كمال كړې او خلك پسې خبرې كوي.

عمر فاروق رضي الله عنه لويه اجتماع جوړه كړه ټول خلك يې د مدينې منورې راغونډ كړه.

فقال حق على كل مسلم ان يقبل رأس عبدالله بن حذافة وانا ابدأ فقام عمر رضي الله عنه فقبل رأسه. په هر مسلمان واجب دي چې هغه به د عبد الله بن حذافه رضي الله عنه سر ښكلوي اول شروع زه كوم راپاڅيده د خلكو مخكې ده سر ورله ښكل كړو وايې راشي تاسې هم سر د ده ښكل كړې ده خو څه بد كار نه دې كړې چې ديو كافر سر يې ښكل كړو او دومره مسلمانان

يې پرې خوشې کړه او تاسې لا اوس پېغورونه هم ورکوي .

نو د خلکو خولې يې هم بندې کړې او مونږ ته دا جزيه ثابته شوه چې صحابه وو د د سر ښکل کړې دي .

دا حديث ابو نعيم په معرفة الصحابة جلد ۱۱ صفحه ۳۵۲ کې ذکر کړې ، سبل الهدای والرشاد في سيرة خير العباد ذکر کړې په جلد ۱۱ صفحه ۳۶۱ کې ، ابن سعد ذکر کړې په طبقات خپل جلد ۱ صفحه ۱۹۹ کې ، ابن عساکر ذکر کړې په تاريخ خپل جلد ۲۷ صفحه ۲۵۸ کې ، امام ذهبي ذکر کړې په تاريخ الاسلام جلد ۱ صفحه ۴۲۵ کې ، ابن کثير ذکر کړې په البداية والنهاية جلد ۷ صفحه ۲۴۷ کې .

## اوم روايت :

ان معاوية رضي الله عنه قبل رأس عثمان رضي الله عنه.

دا حديث ذکر کړې تاريخ دمشق جلد ۵ صفحه ۲۱۸ کې .

بعث عثمان بن عفان المسور بن مخرمة الى معاوية رضي الله عنه يعلمه انه محصور ويأمره ان يبعث اليه جيشاً سريعاً يمنعونه .

عثمان رضي الله عنه مسور بن مخرمه يې وليږه په ايامو د محاصرې کې چې دې محصور وو معاويه رضي الله عنه خبر کړه چې يو تيز لښکر راوليږي چې ماته مدافع شي د دې ظالمانو نه مې بچ کړي .

فلما قدم على معاوية رضي الله عنه وابلغه ذلك ركب معاوية رضي الله عنه نجائبه ومعه معاوية بن حديج ومسلم بن عقبة . کله چې مسور بن مخرمة رضي الله عنه شام ته ورسيده معاويه رضي الله عنه خپله هم په آس راسپور شو .

ومعه معاوية بن حديج مسلم بن عقبة فسار من دمشق الى عثمان عشراً فدخل المدينة نصف الليل فدق باب عثمان فدخل فأكب عليه فقبل رأسه .

معاويه رضي الله عنه د شپې راورسيده او پرې راتيټ شو دده سر يې ښکل کړو .

## اتم روايت :

ان ابو بكر صديق رضي الله عنه قبل خد عائشة رضي الله عنها .

دا حديث صحيح البخاري بيروت چاپ جلد ۳ صفحه۱۴۲۶کې ذکر ده رقم د حديث ده :
۳۷۰۴ دا اوږد روايت دي :

قال البراء فدخلت مع ابي بكر على اهله فاذا عائشة رضي الله عنها ابنته مضطجعة قد اصابتها حمى فرأيت أباها فقبل خدها وقال كيف انت يا بنية .

دا حديث امام بيهقي په سنن خپل جلد ۲ صفحه ۳۴۳ کې هم ذکر کړی .
دارنګې معجم الکبير د طبراني جلد ۱۷ صفحه ۲۲ کې هم ذکر کړي .

## نهم روايت :

ان جابر رضي الله عنه قبل اباه بعد موته .

خپل والد صاحب يې شهيد شوی وه حضرت جابر رضي الله عنه راغې بښکل يې کړو .
دا حديث ذکر کړي ابن اعرابي په القبل والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۳۵ کې فرمايي :

اخبرنا يحيى بن ابي طالب انبأ عبدالوهاب بن مسلم عن ابي الزبير عن جابر رضي الله عنه قال : لما قتل أبي يوم احد أتيته وهو مسجي فجعلت اكشف عن وجهه اقبله والنبي صلى الله عليه وسلم رأني ولم ينهني .

حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې هر کله چې زما والد شهيد شو په ورځ د احد زه ورته راغلم او دې په څادر کې پټ وه نو شروع شوم زه لوڅ مې کړ مخ ورلره بښکلوه مې او نبي عليه السلام ما ته کتل او زه يې نه منع کولم نو د شهيد او مړي بښکلول ترې ثابت شو چې دا جائز دي .

## لسم روايت :

ان ابو هريرة رضي الله عنه قبل بطن حسن رضي الله عنه .

دا حديث ذکر کړي مسند احمد جل د۱٦ صفحه ۲۰۱ کې فرمايي :

حدثنا محمد بن ابي عدي عن ابن عون عن عمير بن اسحاق قال کنت مع الحسن بن علي فلقينا ابو هريرة رضي الله عنه فقال : ارني اقبل منك حيث رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل قال فقال بقميصه قال فقبل سرته .

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه حضرت حسن رضي الله عنه ته فرمايي را وښايه ما ته هغه ځاى چې ما نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ليدلې وه چې ته به يې پرې ښکلولې راوي وايي چې حضرت حسن رضي الله عنه اشاره قميص ته وکړه .

قال فقال بقميصه .

تعديت د قال چې په باء راشي په معنی د اشارې سره وي نو قميص ته يې اشاره وکړه قميص يې اوچت کړو . حضرت ابو هريرة رضي الله عنه د حضرت حسن رضي الله عنه نوم ښکل کړو ، ځکه دده په ماشومتوب کې نبي عليه السلام په دغه ځاى شونډې مبارکې ايخې وي هغه تبرک پرې حاصلوي ، بعضې خلک ورته نو وايي .

شعيب الارنوط په نوم باندې چې کوم تخريج دي او تخريجات يې کړي دده نه هم ډيرې زياتې غلطې شوې دي دده د مسند احمد تخريج کړي او صحيح ابن حبان تخريج يې هم کړي د مسند احمد په تخريج کې دغه حديث ته يې ضعيف ويلې دي وايي ددې په سند کې عمير بن اسحاق راغلې دي باقي رجال د صحيح بخاري دي سوا د عمير بن اسحاق نه دده د وجې نه يې حديث ضعيف کړي دي ، بيرته بيا په صحيح ابن حبان جلد ۱۵ صفحه ۴۲۰ ابن حبان همدا حديث ذکر کوي او بيا وايي :

قال شعيب الارنوط اسناده صحيح .

نو ددوي حافظې نشته .

دا حديث ذکر کړي امام بيهقي په سنن خپل جلد ۲ صفحه ۱۸ کي امام طحاوي ذکر کړي په مشکل الآثار جلد ۴ صفحه ۲٦۷ کې ، هاجري ذکر کړي په الشريعة جلد ۴ صفحه ۳۳۲ کې ، احمد بن حنبل ذکر کړي په فضائل الصحابة جلد ۳ صفحه ۳۵۴ کې ، خطيب بغدادي ذکر کړي په تاريخ بغداد جلد ۴ صفحه ۱۳۲ کې ابن کثير ذکر کړي په البداية جلد ۸

صفحه ۳٦ کې .

## يولسم روايت :

ان يزيد بن الاسود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبل كف واثلة ابن الاسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ .

حضرت يزيد د حضرت واثله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كف ښكل كړو .

دا حديث ذكر كړي القبل و المعانقة و المصافحة د ابن اعرابي جلد ۱ صفحه ۴۴ کې فرمايي ؛

حدثنا عباس الدوري حدثنا شبابة حدثنا هشام بن الغاز حدثنا حيان ابو النضر قال قال لي واثلة بن الاسقع قدني الى يزيد بن الاسود .

ابو النضر وايي چې واثله بن اسقع ماته وويل چې ما يزيد بن اسود ته بوځه .

فانه قد بلغني ان المأبه . هغه بيمار ده ورځمه .

فقدته فلما دخل عليه قلت انه ثقيل قد وجهه وذهب عقله فقال نادوه فقلت هذا اخوك واثلة قال اظن شبابة قال فلما سمع ان واثلة قد جاء قال فرأيته يلتمس بيده .

هغه چا پوه کړو چې حضرت واثله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغې د هغه د سترګو نظر کمزوری وو لاس يې تپه وو وايي ما راواخيسته لاس د واثله .

فجعلتها في يده . د حضرت واثله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس مې د حضرت يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې کيخود .

فجعل يقلب كفه . شروع شو چې لاس د حضرت واثله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې اړوه راړوه .

ويضعها مرة على فؤاده ومرة على وجهه وعلى فيه . کله هغه لاس د واثله بن اسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زړه ږدي کله يې په مخ باندې ږدي کله يې په خوله باندې ږدي .

وانما أراد ان يضع يده موضع يد واثلة من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

مقصد يې دا وه چې کيږدي لاس خپل په هغه ځای باندې چې حضرت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت واثله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاس ايخي وو .

دا حديث ذکر کړي ابن قدامه په المتحابين في الله جلد ۱ صفحه ۹۱ کې .

# دريم مبحث : د تابعينو رَحِمَهُمُ اللهُ عمل مع الصحابة رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وفيما بينهم :

ادب المفرد د امام بخاري جلد ۱ صفحه ۳۳۸،۳۳۸ عبد الرحمن بن رزين فرمايي : مونږ ربذه مقام ته لاړو چا مونږ ته وويل دلته سلمه بن الاکوع صحابي موجود دي مونږ ورغلو .

حدثنا ابن ابي مريم قال ثنا عطاف بن خالد حدثني عبد الرحمن بن رزين قال مررنا بالربذة فقيل لنا ها هنا سلمة بن الأكوع فأتيناه .

فسلمنا عليه فأخرج يديه . لاسونه يې راوويستل دڅادر نه وي ويل :

بايعت بهاتين نبي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . په دغه لاسونو مې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بيعت کړی دی .

فأخرج كفاً له ضخمة . لاس يې راوويست چاغ .

كانها كف بعير فقمنا اليها فقبلناها . مونږ ورپاڅيدو مونږ ښکل کړو .

تابعي دي د صحابي لاس ښکلوي .

ادب المفرد باندې الباني تخريج کړې لاندې ليکي :

اقر الباني في ذيليه في تحسين الحديث وقال حسن الاسناد .

دا حديث ذکر کړی امام طبراني په معجم الاوسط جلد ۲ صفحه ۱۶۷ کې .

علامه هيثمي ذکر کړی په مجمع الزوائد جلد ۷ صفحه ۳۵۴ کې .

دويم روايت :

ان يحيى بن الحارث الذماري رَحِمَهُ اللهُ قال يد واثلة بن الأسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

دا حديث مذکور دی په معجم الكبير جلد ۵۱ صفحه ۴۶۹ کې فرمايي :

حدثنا محمد بن هارون بن محمد بن بكار الدمشقي حدثنا محمود بن خالد حدثنا مروان بن محمد الطاطري حدثنا ابوعبد الملك الفزاري حدثني يحيى بن الحارث الذماري قال

لقيت واثلة بن الاسقع فقلت بايعت بيدك هذه رسول الله ﷺ فقال نعم فقلت اعطني يدك اقبلها فاعطانيها فقبلتها.

ما ورته وویل په دې لاس دې بیعت کړې رسول الله ﷺ سره ؟ ویلې او ما ویل لاس دې راکه ښکلوم یېلاس یې راکړو ما ښکل کړو.

دا حدیث ذکر کړي علامه هیثمي په مجمع الزوائد جلد ۷ صفحه ۳۵۳ کې.

## دریم روایت:

ان ثابت رحمه الله قبل يد انس ابن مالك رضي الله عنه.

امام ابي يعلى په مسند خپل جلد ٦ صفحه ۲۱۲ کې دا حدیث ذکر کړې:

حدثنا محمد بن مرزوق حدثنا محمد بن عبدالله الانصاري حدثنا ابي عن جميلة ام ولد انس بن مالك قالت كان ثابت اذا اتى أنساً قال انس يا جارية هاتي لي طيبا امسح يدي فان ابن ام ثابت رضي الله عنه اذا جاء لم يرض حتى يقبل يدي.

حضرت ثابت به چې کله حضرت انس رضي الله عنه ته راغې انس رضي الله عنه به خپلې وینځې ته چې جمیله نومیږي هغې ته اواز کوي لږ خوشبوي راکړه چې لاس باندې ومږم وجه داده چې حضرت ثابت نه راضي کیږي ترڅو لاس زما ښکل نه کړي ده به له عاجزي نه خپل وس کوه چې لاس ورته پرې نږدي وایي حضرت ثابت چې زما لاس ښکل کړې نه وای راضي کیږي وویل به یې چې دا خو هغه لاس دې چې لږېدلي د نبي علیه السلام د لاس سره.

دا حدیث ذکر کړي امام بیهقي په شعب الایمان جلد ۴ صفحه ۱۲۱ کې، علامه هیثمي په مجمع کې ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۱۵۵ کې، دا حدیث حلیة الاولیاء کې ذکر کړي جلد ۲ صفحه ۳۲۷ دې کې الفاظ بدل دي:

ثابت البناني يقول قلت لانس ابن مالك احب ان اقبل ما رأيت به رسول الله ﷺ.

دا مې راماندي چې زه هغه ځای ښکل کړم په کومو سترګو چې تا رسول الله ﷺ کتلي کړه اجازت وي دا سترګې دې ښکلوم.

فامكنه من عينيه. نو اجازت یې ورکړو چې سترګې مې ښکل کړه نو هغه دده سترګې

بنكل كړي چې تا په دې سترګو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته کتلي .

## ځلورم روايت :

ان ابو مالك الاشجعي رَحِمَهُ اللهُ قبل يد عبدالله بن اوفى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

دا حديث مذكور دي په الرخصة في تقبيل اليد د محمد بن ابراهيم المقري شيخ البخاري جلد ۱ صفحه ۲۵ کې :

حدثنا محمد بن عبدالله بن عبدالسلام البيروتي مكحول حدثنا يوسف بن سعيد بن مسلم حدثنا خالد بن يزيد حدثنا ابو مالك الاشجعي قال قلت لعبدالله بن ابي اوفى ناولني يدك التي بايعت بها رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فناولنيها فقبلتها .

## پنځم روايت :

ان ابو النضرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبل خد الحسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

دا حديث ابي داؤد ذكر كړي جلد ۲ صفحه ۷۷۷ کې :

حدثنا ابوبكر بن ابي شيبة حدثنا المعتمر عن اياس بن دغفل قال رأيت أبا نضرة قبل خد الحسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا.

دا حديث امام بيهقي سنن خپل کې ذكر كړي جلد ۲ صفحه ۳۴۴ ، ابن ابي الدنيا ذكر كړي په الاخوان جلد ۱ صفحه ۱۶۶ کې .

## شپږم روايت :

ابوالعالية رَحِمَهُ اللهُ قبل تفاح مدفوعه من كف انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې منه وه سيب چې ورته هم وايي اړه يې را اړه يې په لاس کې ابو العالية ته يې چې ور کړه هغه بنكل كړه ځكه چې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس ورسره لږيدلې وه .

دا حديث ذكر كړي القبلة والمعانقة والمصافحة جلد ۱ صفحه ۴۲ کې فرمايي :

حدثنا محمد بن اسماعيل حدثنا ابوسلمة هو موسى بن اسماعيل التبوذكي حدثنا حماد بن

سلمة حدثنا ثابت ان انسا دفع الى ابي العالية تفاحة فجعلها في كفه وجعل يمسحها ويقبلها ويمسحها بوجهه وقال: تفاحة مست كفا مس كف النبي ﷺ.

ثابت صاحب فرمايي حضرت انس رضي الله عنه حضرت ابو العالية ته منه ورواچوله هغه لاس کې ونيوله هغه يې داسې مسحه کوله بيا يې ښکلوله او په مخ يې مږله ځکه دې منې سره لاس لږيدلي کوم لاس چې د نبي عليه السلام د لاس سره لږيدلي وه يعنې دې منې سره د حضرت انس رضي الله عنه لاس لږيدلي او د حضرت انس رضي الله عنه لاس سره د نبي عليه السلام لاس لږيدلي له هغې وجې نه دې منې ته د برکت عقيده ساتي او پر مخ يې مږي او راکاږي.

## المبحث الرابع : في ذكر أقوال الفقهاء والمحدثين من المذاهب الأربعة المعروفة وغيرهم :

فقهاء نه در المختار جلد ۵ صفحه ۷۰۱ ذکر کوي :

ولنقل المصنف عن الجامع انه لا بأس بتقبيل يد الحاكم والمتدين السلطان العادل وقيل السنة. باک نشته دي په ښکلولو د حاکم متدين کې چې عادل بادشاه وي چا ويلې سنت دي.

وتقبيل رأس العالم اجود كما في البزازية ولا رخصة فيه لغيرهما.

د غير عالم او د غير عادل بادشاه تقبيل کې اجازت نشته.

وفي المحيط ان لتعظيم اسلامه واكرامه جاز وان لنيل الدنيا كره.

که د اسلام او اکرام لپاره وي جائز دي عامو خلکو کې هم او که د دنيا د حصول لپاره وي مکروه دي.

او دا مسئله هم دلته راغله که طلب د عالم او زاهد نه وشي :

ان يدفع اليه قدمه ويمكنه من قدمه ليقبله اجابه وقيل لا.

چا ورته وويل دا قدم راته پريږده ښکلوم يې فقهاء مختلف دي بعضې وايي اجابه خبره دې ومني قدم دې ورته پريږدي چې ښکل يې کړي. قيل لا، چا ويلي نه دي پريږدي.

بيا وايي :

يكره تقبيل المرأة فم اخرى او خدها عند اللقاء او الوداع .

ښځه چې بله ښځه په خوله ښکلوي او يا يې رخسار ښکلوي د ستړي مشو او مخه ښې په وخت کې مکروه دي خو دا ټول حمليږي په شهوت باندې که يوه زنانه وي او ذي عزت وي او هغې ته خلک ښه عقيده لري شيخه صالحه ده هغه صورة بيا ترې مستثنى ده.

بعضې خلک داسې کوي چې چا ته لاس ورکړي نو خپل لاس ښکل کړي مونږ بير داسې ګورو .

وكذا ما يفعله الجهال من تقبيل يد نفسه فهو مكروه فلا رخصة فيه .

نو دا هم وايي مکروه دي ، بعضې خلک داسې وي چې د عالم د وړاندې يو ځل ځکه ښکلوي بيا ورپا څيږي .

وكذا ما يفعلونه من تقبيل الارض بين يدي العلماء والعظما فحرام .

د فقهاء لفظ د حرام نه مکروه تحريمي مراد وي .

والفاعل والراضي به آثمان لانه يشبه عبادة الوثن .

فاعل او راضي په دې کار دواړه ګنهګار دي ځکه دا مشابه دي د عبادت د بُت سره .

وهل يكفران . کافر کيږي په دې عمل سره .

على وجه العبادة والتعظيم كفر وان على وجه التحية لا .

که هسې اکرام او تحيه وي کافر کيږي نه مرتکب د کبيرې جوړيږي او که په نيت د عبادت باندې وي بيا کفر دي .

وفي الوهبانية يجوز بل يندب القيام تعظيماً للقادم .

مستحب دي ودريدل تعظيماً د قادم لپاره څوک چې د بهر نه راشي .

دا رنګې محيط د برهاني جلد ۵ صفحه ۲۷۹ کې فرمايي :

ان قدم يد نفسه لغيره فهو مكروه لانه من فعل الفساق .

که چا دا خپل لاس واخيست په زوريې بل ته مخامخ کړو چې ښکل يې کړه ور جوړه يې کړو نو مکروه دي ځکه دا له عمل د فساقو نه ده .

وان قبل يد غيره او قبل يد عالم او سلطان عادل لعلمه وعدله لا بأس به.
درانګې حاشية الطحطاوي على المراقي جلد ۲ صفحه ۳۱۱ کې فرمايي:
وسنة ان تكون بكلتا يديه بغير حائل.
سنت دا دی چې سترې مشي په دواړو لاسونو وشي بغير د حائل نه.
وعند اللقاء بعد السلام ان يأخذ الابهام.
په وخت د لقاء کې لاس چې دې ورکړل وروسته له سلام نه وبه نيسي ابهامه ګوته.
فان فيه عرق تتشعب منه المحبة.
په دې ځای کې يو رګ دي چې دې رګ ته دې زور ورکړو محبت زياتيږي.
د امام ابو حنيفه رحمه الله نه څه اقوال منقول شوې دي په کراهيت د تقبيل باندې هغه حمل دي شوی په شهواتو باندې د اکرام لپاره په هغې نه دي حمل.
الاختيار للتعليل المختار جلد ۱ صفحه ۴۸ کې فرمايي:
ولا بأس بالمصافحة ولا بأس بتقبيل يد العالم والسلطان العادل.
تبيين الحقائق شرح د کنزالدقائق جلد ۱۶ صفحه ۴۰۰ کې ليکي په دې کې وايي چې چا معانقې ته مکروه ويلې لکه امام صاحب نه منقول ده نو دا:
ماكان على وجه الشهوة. مراد ده.
اما على وجه البر والكرامة فجائز ورخص الشيخ الامام شمس الأئمة السرخسي وبعض المتأخرين تقبيل يد العالم او المتورع على سبيل التبرك وقبل ابو بكر بين عيني النبي صلى الله عليه وسلم بعد ما قبض. وقال سفيان الثوري تقبيل يد العالم او يد السلطان العادل سنة.
دې ته يې سنت وويل په دغه وخت کې عبدالله بن المبارک ورپاڅيده.
فقبل رأسه. سريې ورته بنکل کړو.
وما يفعله الجهال من تقبيل يد نفسه اذا لقي الغير فهو مكروه فلا رخصة فيه.
لکه مخکې تير شول.

دارنګې العناية شرح هداية جلد ۱۴ صفحه ۲۷۱ کې ليکلي دي :

المکروه من المعانقة ما کان على وجه الشهوة وعبر عنه المصنف رَحِمَهُ اللهُ بقوله في ازار واحد فانه سبب يفضي اليها فاما على وجه البر والکرامة اذا کان عليه قميص او جبة فلا بأس به وعن سفيان تقبيل يد العالم سنة .

دارنګې درر الحکام شرح غرر الاحکام جلد ۳ صفحه ۴۹۹ کې ليکلي :

رخص الشيخ الامام شمس الأئمة السرخسي وبعض المتاخرين تقبيل يد العالم المتورع على سبيل التبرک .

دارنګې بحر الرائق شرح کنز الدقائق جلد ۲۲ صفحه ۱۶۶، ۱۴۵ کې ليکلي دي کې هم همغه مضمون ذکر کوي د سفيان صاحب قول را اخلي :

تقبيل اليد العالم او السلطان العادل سنة .

دارنګې مجمع الانهر في شرح ملتقى الابحر جلد ۸ صفحه ۱۷۵ کې ليکلي ددې عبارت هم د ماسبق په شان دي تحفة الملوک جلد ۱ صفحه ۲۳۴ کې ليکلي :

ويکره تقبيل الرجل فم الرجل ومعانقته ولا بأس بالمصافحة وقيل لا بأس بهما ايضاً اذا قصد المبرة والاکرام ولا بأس بتقبيل يد العالم والسلطان العادل .

تر دې ځای په تقبيل باندې د احنافو دلائل وه .

## دويم فقه د امام مالک صاحب :

شرح مختصر خليل جلد ۵ صفحه ۴۶۱ کې ليکلي :

وبقي عليه تقبيل الميت وهو جائز وقد فعله ابو بکر بالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعثمان بن مظعون .

دا روايت مخکې تير شوې ، دارنګې الفواکه الدواني على رسالة ابن ابي زيد القيرواني جلد ۸ صفحه ۳۰۱ کې ليکي :

وانما کره مالک تقبيل اليد . تقبيل د لاس د غير امام مالک مکروه ګڼلي .

یا فتح الباري کې د ابن بطال مالکي قول دي هغه وايي چې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ قول حمل دي په شهواتو باندې هر چې په نیت د تحیه او اکرام باندې وي بیا جائز دي هغه مالکي دي د موالکو مجتهد دي فقیه دي د خپل امام په قول بنه پوهيږي .

دارنګې حاشية العدوي على شرح كفاية الطالب الرباني جلد ۸ صفحه ۳۰۱ کې مذکور دي :

قال ابن بطال انما يكره تقبيل يد الظلمة والجبابرة .

امام مالک چې مکروه ګڼلې د ظالمانو جابرو و لاس ښکلول یې مکروه ګڼلې .

واما يد الاب والرجل الصالح ومن ترجى بركته فجائز .د پلار او د رجل صالح او هر هغه څوک چې هغه نه د برکت امید کیږي لاس ښکلول یې جائز دي .

## دریم فقه د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ :

شرح البهجة الوردية جلد ۱۴ صفحه ۲۰۲ :

مسئلة يسن تقبيل يد العالم او الصالح او الشريف او الزاهد كما فعلته الصحابة مع رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويكره ذلك لغني ونحوه ويستحب القيام لأهل الفضل اكراما لا رياء واعظاماً اى تفخيماً .

د عالم ، شریف ، زاهد او صالح لاس ښکلول مسنون دي صحابه وو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دا عمل کړې وه مالدار غني بیا مکروه دي بنه خلک چې راشي مجلس ته قیام ورته مستحب دي د ریاء لپاره جائز نه دي .

دارنګې روضة الطالبين وعمدة المفتين جلد ۲ صفحه ۴۵۷ کې لیکلي :

قلت المختار ان تقبيل يد غيره ان كان لزهده وصلاحه او علمه او شرفه وصيانته ونحو ذلك من الامور الدينية فهو مستحب وان كان لغناه ودنياه وشوكته ووجاهته عند اهل الدنيا ونحو ذلك فمكروه .

دارنګې اعانة الطالبين جلد ۳ صفحه ۳۰۵ کې مذکور دي :

ويسن تقبيل يد الحي لصلاح او نحوه من الامور الدينية كعلم وزهد ويكره ذلك لغني او

نحوه من الامور الدنيوية كشوكة ووجاهة ويسن القيام لاهل الفضل اكراماً لا رياء وتفخيماً.
اهل فضل ته اكراماً قيام مسنون دي .

دارنګې حواشي الشرواني جلد ۷ صفحه ۲۰۸ کې مذکور دي :

ولا بأس بتقبيل وجه الميت الصالح ويسن تقبيل يد الحي الصالح ونحوه من الامور الدينية كعلم وشرف وزهد ويكره ذلك لغناه او نحوه من الامور الدنيوية كشوكته ووجاهته عند اهل الدنيا ويكره حنى الظهر .

دارنګې المجموع شرح د مهذب جلد ۴ صفحه ۴۳۶ کې ليکلي :

يستحب تقبيل يد الرجل الصالح والزاهد والعالم ونحوهم من اهل الاخرة واما تقبيل يده لغناه ودنياه وشوكته ووجاهته عند اهل الدنيا بالدنيا ونحو ذلك فمكروه شديد الكراهة .

دارنګې اسنى المطالب جلد ۱۴ صفحه ۲۹۸ کې ليکلي دي :

قد تقرر انه يسن تقبيل يد الصالح بل ورجله .

ثابته ده چې د صالح لاس ښکلول مسنون دي بلکې ورجله خپې ښکلول يې هم جائز او مسنون دي .

دارنګې تحفة المحتاج في شرح المنهاج جلد ۲۹ صفحه ۲۹۱ کې ليکلي :

ويسن تقبيل يد الحي الصالح ونحوه من الامور الدينية كعلم وشرف وزهد ويكره ذلك لغناه او نحوه من الامور الدنيوية كشوكته ووجاهته عند اهل الدنيا .

د شوافعو حوالې په دغه مسئله ډيرې زياتې دي د زيات طوالت له وجې مې په دې اکتفاء وکړه .

## حلورم فقه د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ :

الاقناع جلد ۲ صفحه ۷۱ :

ويسن تقبيل يد الحي الصالح لصلاحه ونحوه من الامور الدينية كعلم وزهد ويكره ذلك لغني أو لنحوه من الامور الدنيوية كشوكة ووجاهة ويسن القيام لاهل الفضل اكراماً لا رياء وتفخيماً

جائز او مسنون دي د بنه سړي لاس ښکلول د امور ديني له وجهي نه لکه علم او زهد او مکروه دي لاس ښکلول د غني او يا په مثل د غني له وجې د امورو دنيويه نه لکه شوکت او جاه او سنت دي قيام لپاره د اهل فضل اکراماً لا رياءً وتفخيماً .

دارنګې د کويت موسوعة الفقهية الكويتية من وزارة الاوقاف والشئون الاسلامية بالكويت جلد ۲ صفحه ۴۶۴۸ کې ليکلي :

يجوز تقبيل يد العالم الورع والسلطان العادل وتقبيل يد الوالدين ايضاً والاستاذ وكل ما يستحق التعظيم والاكرام كما يجوز تقبيل رأس والجبهة وما بين العينين ولكن كل ذلك اذا كان على وجه المبرة والاكرام او الشفقة عند اللقاء والوداع وتديناً واحتراماً مع امن الشهوة.

دارنګې فتاوی شبكة الاسلامية جلد ۱۰۹ صفحه ۱۵۳ رقم د فتوی دي ۴۳۷۶۰ عنوان د فتوی حكم تقبيل يد الوالدين تاريخ د فتوی دی ٦ د ذالحجې ۱۴۲۴ :

سوال : تقبيل يد الاب والام هل هو من السنة .

الفتوى : الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه أما بعد !

فقد سبقة الاجابة على حكم تقبيل اليد على العموم في الفتوى رقم : ۳۵۷٦٦، کې وايي مونږ دا فتوی ذکر کړي ده .

اما بخصوص الوالدين فقد صاحب تبيين الحقائق عند قول زيلعي تقبيل يد العالم او السلطان العادل سنة قلت كذلك يجوز تقبيل يد الوالدين .

دارنګې فتح الباري د ابن حجر جلد ۵ صفحه ۲۷۳ کې ليکلي : عجيبه استدلال کوي :

استنبط بعضهم من مشروعية تقبيل الاركان جواز تقبيل كل من يستحق التعظيم من آدمي وغيره .

هر کله چې حجر اسود او رکن يماني ددې تقبيل په احاديثو ثابت شو او جائز شو نو معلومه شوه چې روا ده تقبيل د هر هغه شي چې هغه مستحق د تعظيم وي آدمي وي که غير وي له آدمي نه .

فأما تقبيل يد الآدمي فيأتي في كتاب الادب حواله ورکوي .

اما غيره فنقل عن امام احمد انه سئل عن تقبيل منبر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتقبيل قبره صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . چا د امام احمد نه تپوس وکړ چې مدينه منوره کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ممبر ښکلول او يا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روضه ښکلول څنګه دي .

فلم ير به بأس . امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ورته وويل دا باک نه کوي .

واستبعد بعض اتباعه صحة ذلك .

ددې بعضې تابعدارانو نسبت ددې قول امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ته بعيد ګڼلې دي چې په بعضې تابعدارانو کې اشاره ابن تيميه او ابن قيم ته ده چې فروعو کې دده مقلدين دي او داسې راى ته شرک وايي .

ونقل عن ابن ابي الصيف اليماني احد علماء مكة من الشافعية جواز تقبيل المصحف واجزاء الحديث وقبور الصالحين .

هغوي دا فتوى ورکړې ده د شوافعو نه چې قرآن کريم ښکلول د احاديثو کتابونه ښکلول او قبرونه د صالحانو ښکلول باک نه لري .

بهر حال د قبر ښکلولو متعلق د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ممبر او روضه مبارکه خصوصيات دي او دې نه غير عام قبرونه بعضې فقهاو مکروه ګڼي بعضې لا بأس ګڼې نو دا به په حق د عوامو کې فتوى نه ورکوي او نه به عوامو ته دا وايي چې قبر ښکلول جائز دي .

که استفتاء وشي نو ورته وايي چې دې شيانو نه ځان ساته ځکه سدِ باب په کار دي عوام هسې نه چې د کاڼي ښکل کړي او د هغې سره يې بيماري ښه شي دا مؤثرِ حقيقي ګڼي او ذات الله يې له ياده وځي او دا کرامت دده نه ګڼي او دې مؤثرِ حقيقي ګڼي .

او که يو عالم سړي چې هغه قبر او مافي القبر بيلولې شي او هغه تاثير د خالق حقيقتاً د مؤثرِ مجازي نه بيلولې شي که هغه بيا تقبيل د قبر کوي نو شرک نه دي .

شيخ حسن جان صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه بار بار دا خبره طالبانو اوريدلې او په کيسټو کې موجود ده چې زه کله بخارئ کې د امام بخاري قبر ته لاړمه ما يې شناختې ښکل کړې نو داد

تېر بنکلول دي کنه نو چې د امام بخاري شناختې د محبت نه بنکلوي نو د نبي اکرم ﷺ د روضې بنکلول څنګه ناجائز شو یا د صحابي یا بل ولي څنګه ناجائزه شول.

خو شیخ حسن جان صاحب رحمه الله عالم وه او عالم مؤثرِ حقیقي د مجازي نه بیلولې شي دا په نیت د محبت او اظهار محبت سره شوې نو بیا د غه فتوی د شوافعو دې باره کې ده چې تبور د صالحینو لابأس به دي تقبیل د هغې نو چا چې د جواز فتوی کړې په حق د خواصو کې او چا چې مکروه ویلې په حق د عوامو کې عوامو ته دې د دې فتوی ور نه کړې شي.

دا رنګې تحفة الاحوذي جلد ۷ صفحه ۳۹ کې مذکور دي د امام نووي رحمه الله قول نقلوي:

تقبيل يد الرجل لزهده وصلاحه او علمه او شرفه او صيانته او نحو ذلك من الامور الدينية لايكره بل يستحب فان كان لغناه او شوكته او جاهه عند اهل الدنيا فمكروه شديد الكراهية.

دا مسئله د تقبیل وه چې د مختلفو کتابو حوالو سره او نصوصو سره ذکر کړه او مجموعه د ټولو داده چې دا امرِ جائز دي که د چا زړه یې مني و دې کړي که نه وي امرِ لازم نه دي چې خامخا دې تقبیل وشي او یا دا چې چا تقبیل ونه کړو هغه نه سړي خفه شي چې ولې دې ونه کړو دا هم صحیح نه ده.

او بعضې وخت داسې هم وي چې یو کس تقبیل نه کول په نیت د کبر باندې کوي او یا تقبیل نه کول علامه د پنجپیریانو وګرځیږي هغه مجلس د دوي نه وي چې دې راشي نو ته پرې پوهیږې چې دا سړي نور هم ګډوډ ده.

هغه جدا خبره ده چې بعضې کار د غلطو خلکو علامه شي بیا د هغې خلکو خلاف په کار دي زمونږ د بارې د حضرت صاحب شیخ مولانا محمد هاشم سمنګاني صاحب زمونږ شیخ به ویل چې هغه د تقبیل الید سخت مخالف وه یو مرید به یې هم د لاس بنکلولو ته نه پریښوده چې چا به بنکل کړو وایي ده به وویل چې دومره زور راکوي لکه چې زما لاس کې څوک ستنې منډي وایي بیا په کندوز کې پنجپیریان پیدا شول هغه وخت کې او هغوي دې عمل ته شرک وویل نو بیا به یې مخالفت نه کوه د تقبیل الید.

مسئله د تقبيل اليدين والرجلين ختمه شوه.

بعون الملك الوهاب



بسم اللہ الرحمن الرحیم



# علماء احناف

# علماء حق

خادم عالمزیب الحنفی

+923452131285

